أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ

## برکاتِ ذکر

یعنی

# فضائل ذکر

را د محترم حضرت حافظ مولانا محمد الیاس صاحب مرحوم په فرمان
حضرت مولانا ذکریا صاحب شیخ الحدیث د قرآن آیتونه
او احادیث جمع کړه کوم چه په دیکښ د ذکر برکات د کلمې طیبې
فضائل او د تسبیحات فاطمه ثواب ذکر دے او په خاتمه کښ د
صلوٰة تسبیح بیان دے

پښتو ترجمه
د حضرت مولانا حبیب الرحمن صاحب دار التصنیف روم ضلع مردان

(نیو ایګل ستار پرنټنګ پریس مردان)

# فهرست دَ مضامینو دَ فضائل ذکر

حضرت مولانا شيخ التفسير حبيب الرحمان صاحب

مهتمم دار التصنيف رستم ضلع مردان

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

نحمدہٗ ونصلی علی رسوله الکریم وعلیٰ آله واصحابه واتباعه حملة الدین القویمؕ

چاچه دَ اللّٰهؕ نوم باربار ذکرونه کړیدي. هغوي دَ دے برکت خوند اوپه دے دَ زړهٔ دَ تسلئ نه خبر دي. خدائ پخپله وائي. اَلَا بِذِکْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ "خبردار شئ په ذکر دَ خدائ زړونه تسلي مومي". نن ورځے چه په دنیا کښ کومه پریشاني ده. دَ دے ویلو مقصد دادے چه څوک ځان ته یا دَ خاندان کورکلي په لحاظ سره پریشانه دي دوي ته دَ دے دَ لرے کولو علاج معلوم شي. کیدے شي چه نیکان دَ دے نه فائدهٔ واخلي. او دا څما دَ سختے ګهړئ مدد ګار او ګرځي.

بل دا چه محترم تره مولانا محمد الیاس صاحب مرحوم ته یوه خدائي بخښه شوېدهٔ چه دا کار یئے یواځے په هندوستان کښ نه بلکه په ټوله دنیا کښ خور شویدے. دَ ده دَ تبلیغ اصول ډیر بنه اوپاخه دي. په دیکښ مبلغینو ته دوي دَ ذکر دَ خاص خیال ساتلو وینا کړیده. په دے طریقه دا کار ډیر برکتي اوګرځیده.

دے خوږ محترم راته فرمان اوکړو چه دَ دے قسم یوه رساله په فضائل ذکر اولیکم. چه دا ورسره یو یادداشت وي. دَ ذکر دَ فضائلو احاطه خوګرانه ده. ما مختصراً په دے رساله کښ درے بابه اولیکل. اول دَ ذکر په فضائلو کښ. دویم دَ کلمے طیبے په فضائلو کښ دریم دَ تسبیحات فاطمهؓ بیان کښ دے.

---

# باب اوّل

## دَ ذکر فضائل

دَ خدائ په موږ دومره مهربانئ کړمونه او احسانات دی. چه که یو آیت او حدیث نه وے نو هم موږ ته دَ خدائ ذکر پکار وو. خو سره دَ دے هر کله چه په قرآن حدیث او دَ بزرګانو په حالاتو او وینا کانو کښ دَ دے پاک ذکر ترغیب او ډیر نو بیا خو به په ذکر کښ ډیر وخت لګوی. او دَ دے کلے برکتونه او انوار به ډیرنه ډیر حاصلوی. نو څه آیتونه او احادیث لیکم.

## فصل اول

### دَ ذکر په ایتونو کښ

(۱) فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ۝ (بقره)

پس تاسو ما یاد دوئ زه به تاسو یاد دوم او ځما دَ نعمتونو شکر اوباسئ نا شکری مه کوئ.

(۲) فَإِذَا أَفَضْتُمْ مِنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۝ (بقره)

پس چه تاسو دَ عرفات نه بیرته شئ نو په مزدلفه کښ خدائ یاد کړئ - او ځما دَ ښودنے هسے یاد کوئ

(۳) فَإِذَا قَضَيْتُمْ مَنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا ۝ (بقره)

چه دَ حج کارونه اوکړئ نو دَ خدائ ذکر دَ پلارانو دَ ذکر هسے کوئ. یا دَ دے نه زیات (بقره)

**فائده:-** په حدیث کښ راځی چه دَ دریے تنو دعا نه رد کیږی. ضرور قبلیږی یو چه دَ خدائ ډیر ذکر کوی. دویم مظلوم دریم باچا چه ظلم نه کوی.

(۴) وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَعْدُودَاتٍ (بقره)

او دَ حج په ورځو کښ دَ منٰی په ایسادیدو کښ ذکر کوئ.

(۵) وَاذْكُرْ رَبَّكَ كَثِيرًا وَسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ۝ (آل عمران)

او خپل رب ډیر یادوه سحر او ماښام تسبیح وایه.

(٦) اَلَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰہَ قِیَامًا وَّ
قُعُوْدًا وَّ عَلٰی جُنُوْبِہِمْ (نساء)
(٧) فَاِذَا قَضَیْتُمُ الصَّلٰوۃَ فَاذْکُرُوا
اللّٰہَ قِیَامًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰی جُنُوْبِکُمْ
(نساء)
(٨) وَاِذَا قَامُوْا اِلَی الصَّلٰوۃِ قَامُوْا
کُسَالٰی یُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا یَذْکُرُوْنَ
اللّٰہَ اِلَّا قَلِیْلًا (نساء)
(٩) اِنَّمَا یُرِیْدُ الشَّیْطٰنُ اَنْ یُّوْقِعَ بَیْنَکُمُ
الْعَدَاوَۃَ وَالْبَغْضَآءَ فِی الْخَمْرِ وَالْمَیْسِرِ وَ
یَصُدَّکُمْ عَنْ ذِکْرِ اللّٰہِ وَعَنِ الصَّلٰوۃِ فَہَلْ
اَنْتُمْ مُّنْتَہُوْنَ ط (مائدہ)
(١٠) وَلَا تَطْرُدِ الَّذِیْنَ یَدْعُوْنَ رَبَّہُمْ
بِالْغَدٰوۃِ وَالْعَشِیِّ یُرِیْدُوْنَ وَجْہَہٗ (انعام)
(١١) وَادْعُوْہُ مُخْلِصِیْنَ لَہُ الدِّیْنَ ط (اعراف)
(١٢) اُدْعُوْا رَبَّکُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْیَۃً (اعراف)
(١٣) وَلِلّٰہِ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰی فَادْعُوْہُ
بِہَا (اعراف)
(١٤) وَاذْکُرْ رَّبَّکَ تَضَرُّعًا وَّخِیْفَۃً وَّدُوْنَ
الْجَہْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ (اعراف)
(١٥) اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ اِذَا ذُکِرَ اللّٰہُ
وَجِلَتْ قُلُوْبُہُمْ (انفال)
(١٦) اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُہُمْ
بِذِکْرِ اللّٰہِ اَلَا بِذِکْرِ اللّٰہِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ
(رعد)

ځکه چه خدائی په اولاړه او ناسته یاد وی او
په اړخونو باندے. او دَ زمکے اسمان په پیدا کیدو کښې غور کوی
پس هر کله چه دَ ویرے مونځ پوره کړئ. نو
الله یاد کړئ په اولاړه په ناسته او په اړخونو
باندے. او منافقان مانځه ته په ډیر ناراستئ او دیر بے
دوی خلقو ته ځان مانځه کونکی اروالے ښئی. دوی
دیر لږ خدائی
یادوی.
شیطان داغواړی چه په تاسو کښې دشمنی او بغض
دَ شرابو او جوارئ په وجه پیدا کړی او تاسو
دَ ذکر دَ خدائی نه او دَ مانځه نه واړوی پس
آیا تاسو به دَ دے څیزونو نه منع شئی!
او ته هغه خلق دَ مجلس نه مه باسه کوم. ځکه چه
سحر او ماښام خدائی ته چغے وهی.
او خالص خدائی ته چغے وهئی. دین هم خالص کړئ.
او خدائی ته چغے او وهئی په عاجزئ او په پټه سره.
او دَ خدائی دَ پاره ښه ښه نومونه دی. پس په
دے خدائی ته چغے وهئی.
او یاد کړه رب خپل په عاجزئ او په پټه او نه په
ډیره چغو سحر او ماښام.
خاص مومنان هغه کسان دی. چه هر کله دَ خدائی ذکر
اوشی. نو دَ ویرے نه دَ دوی زړونه ډَر زیږی.
دا داسے خلق دی. چه په الله ایمان راوړی
او دَ دوی زړونه دَ خدائی په ذکر تسلی
بیامومی.

(۱۷) قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ
اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى

(۱۸) وَاذْكُرْ رَّبَّكَ اِذَا نَسِيْتَ (کهف)

(۱۹) وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ
رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ
وَجْهَهٗ - (کهف)

(۲۰) اَلَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَآءٍ
عَنْ ذِكْرِيْ - (کهف)

(۲۱) ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا اِذْ
نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا - (مریم)

(۲۲) وَاَدْعُوْا رَبِّيْ عَسٰى اَلَّا اَكُوْنَ بِدُعَآءِ
رَبِّيْ شَقِيًّا (مریم)

(۲۳) وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ (طٰهٰ)

(۲۴) وَلَا تَنِيَا فِيْ ذِكْرِيْ (طٰهٰ)

(۲۵) وَنُوْحًا اِذْ نَادٰى مِنْ قَبْلُ (انبیاء)

(۲۶) وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ (انبیاء)

(۲۷) وَذَا النُّوْنِ اِذْ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا فَنَادٰى
فِي الظُّلُمٰتِ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ
كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ (انبیاء)

(۲۸) وَزَكَرِيَّآ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ رَبِّ لَا تَذَرْنِيْ
فَرْدًا وَّاَنْتَ خَيْرُ الْوٰرِثِيْنَ (انبیاء)

(۲۹) اِنَّهُمْ كَانُوْا يُسٰرِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ
وَيَدْعُوْنَنَا رَغَبًا وَّرَهَبًا وَكَانُوْا
لَنَا خٰشِعِيْنَ (انبیاء)

(۳۰) وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ

ته وو ته او وایه چه که الله ته چغې وهئ او که
رحمان ته هر یو د دینه د الله ښه نوم دے.

او چه تا نه هیر شي نو د خپل رب ذکر کوه.

ته ځان د هغه خلقو سره پابند کړه. چه خپل
خدائ ته سحر او ماښام چغې وهي. خالص د خدائ
د رضا د پاره.

دوزخ به هغه کافرانو ته پیش شي چه د هغوی
په سترګو ځما د ذکر نه پرده وی.

دا د هغه بنده ذکر دے. چه هغه خپل رب ته
په پټه چغه کړه.

او زه خپل رب ته چغه وهم او امید دے چه
زه به محروم نه شم.

او مونځ ځما د ذکر د پاره اودروه.

او تاسو دواړه ځما په ذکر کښې ناراستیا کوئ
او د نوح ذکر او کړه چه کله ئې خپل رب ته چغه کړه.

او د ایوب ذکر او کړه چه خپل رب ته ئې چغه او وهله.

او یونس و یاد کړه چه د قوم نه خفه لاړه نو
دا یې تیرو کښې چغه کړه چه یواځې ته معبود یې
ته پاک یې او زه د ظالمانو نه یم.

او د زکریا ذکر او کړه چه د خپل رب ته چغه کړه
چه ما یواځې مه پریږده ته غوره وارث یې.

دا ټول پیغمبران نیکو ته په منډه تله او موږ ته به
یې د رغبت او د ویرې د پاره چغې وهلې او دوئ
زموږ د پاره عاجزي کونکي وو.

او ته هغه عاجزي کونکو ته زیرے ورکړه چه د

وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ (حج)

(۳۱) فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا حَتّٰى اَنْسَوْكُمْ ذِكْرِىْ - (مؤمنون)

(۳۲) رِجَالٌ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (نور)

(۳۳) تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا - (سجدہ)

(۳۴) لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِىْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا - (احزاب)

(۳۵) وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ - (عنکبوت)

(۳۶) وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ وَالذّٰكِرَاتِ (احزاب)

(۳۷) يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا (احزاب)

(۳۸) وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ - (صٰفٰت)

(۳۹) فَوَيْلٌ لِّلْقٰسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (زمر)

(۴۰) ثُمَّ تَلِيْنُ جُلُوْدُهُمْ وَقُلُوْبُهُمْ اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ (زمر)

(۴۱) فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ (مؤمن)

(۴۲) فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ (مؤمن)

(۴۳) وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ (زخرف)

(۴۴) اَلَمْ يَاْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ تَخْشَعَ

چه دَخدائ په ذکر دَدوی زړونه ویریږی

پس تاسو دَدوی سره ټوقے اوکړے او ځما یاد ئې نه هیر شه.

کامل مؤمنان سوداګیری دَخدائ دَذکر نه نه غافله کوی.

دوی اړخونه دَ بسترونه اړخ ته کوی. او خدائ ته په ویره او طمع چغے وهی.

ستا سو دَپاره دَرسول نمونه موجوده ده. چه څوک دَالله او دَآخرت دَوَرځے ویریږی او خدائ ډیر یادوی.

او دَخدائ ذکر ډیر لوئ څیز دے

او ذکر کونکی سړی او ذکر کونکے ښځے.

اے ایماندارو خدائ یادوئ په ډیر و یادولو سره.

او آواز کړے وو موږ ته نوح پس موږ ښه فریاد اوریدونکی یو.

پس هلاکت دے. دَ سخت زړو دَپاره دَ ذکر دَخدائ نه

بیا دَدوی څرمنے او زړونه دَخدائ ذکر ته نرم شی.

پس چغے اووهه الله ته او دَده دَپاره دین خالص کړه. پس تاسو په خالص اعتقاد ده ته چغے وهئ.

او چه ښه په پوره دَخدائ دَ ذکر نه ړوند شی. نو شیطان هر وخت دَده سره او سیږی.

آیا دَمؤمنانو دَپاره هغه وخت نه دے راغلے. چه

قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ (حدید)
دَدوی زړونه دَخدای ذکر دپاره خبر شی۔

(۴۵) اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ
عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (مجادله)
په دے منافقانو شیطان غالب شویدے. نو دوی
یے دَخدای دَ ذکر نه منع کړه۔

(۴۶) وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ
تُفْلِحُوْنَ۔ (جمعه)
چه دَجمعے مونځ اوکړئ نو خدای ډیر یاد کړئ
شاید چه خلاصے بیا مومئ۔

(۴۷) يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ
وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (منافقون)
اے ایمانداروتاسو دِ ستاسو مالونه او اولاد دَ
ذکر دَخدای نه غافله نه کړی۔

(۴۸) وَمَنْ يُّعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ
عَذَابًا صَعَدًا۔ (جن)
څوک چه دَخدای ذکر نه مخ اوګرځوی نو خدای
به دے په سخت عذاب کښ ګیر کړی۔

(۴۹) قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ
اَحَدًا۔ (جن)
ته ووایه او دا یه چه زه خویواځے خدای ته چغے
وهم او دَ دَ کا سره څوک شریک نه جوړوم۔

(۵۰) وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ
تَبْتِيْلًا۔ (مزمل)
او دَخدای نوم اخله او دَ هر چا سره تعلق
پریږده۔

(۵۱) وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا (دهر)
او یاد کړه نوم دَ رب خپل سحر او ماښام۔

(۵۲) وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ
بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ
(قلم)
دوی دا سے معلومیږی چه تا په سترګو او په
نظر او غور زوی۔ هر کله چه دا کافران ذکر
واوری۔

**فائده:-** حسن بصریؒ دا آیت دَ نظر دَ دم دپاره معین بنایٔ۔

(۵۳) قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى وَذَكَرَ اسْمَ
رَبِّهٖ فَصَلّٰى۔ (اعلیٰ)
بامراده شه هغه کس چه پاک شه او دَخدای
نوم یے یاد کړو پس مونځ یے اوکړو۔

## دویم فصل دَ احادیثو په ذکر کښ

دَ ذکر په باره کښ څنګه دا دومره آیتونه دی. نو احادیث خو پکښ ډیر زیات دی بخاری شریف دیرش پارے او ابوداؤد شریف دوه دیرش پارے دے. او دَ حدیثونو کتاب دَ ذکر دَ تعریف نه ډک دے. خو زه به دَ نمونے دَ پاره لږ احادیث اولیکم. او ریښتیا خو دا ده چه څوک عمل کوی نو دغه دَ پاره یو حدیث هم کافی دے او دَ بے عمله دَ پاره دفترونه بے کاره دی. لکهٔ خره بار دے.

(۱) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلعم یَقُوْلُ اللّٰہُ اَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِیْ بِیْ وَاَنَا مَعَهٗ اِذَا ذَکَرَنِیْ فَاِنْ ذَکَرَنِیْ فِیْ نَفْسِهٖ ذَکَرْتُهٗ فِیْ نَفْسِیْ وَاِنْ ذَکَرَنِیْ فِیْ مَلَاٍ ذَکَرْتُهٗ فِیْ مَلَاٍ خَیْرٍ مِّنْهُمْ وَاِنْ تَقَرَّبَ اِلَیَّ شِبْرًا تَقَرَّبْتُ اِلَیْهِ ذِرَاعًا وَاِنْ تَقَرَّبَ اِلَیَّ ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ اِلَیْهِ بَاعًا وَاِنْ اَتَانِیْ یَمْشِیْ اَتَیْتُهٗ هَرْوَلَةً۔

دَ ابوهریرهؓ نه روایت دے چه خوږ نبیؐ وے چه خدائ وے. چه زه دَ بنده سره هغه معامله کوم څه رنګ چه دَ هغه په ما ګمان وی. او هرکله چه دے ما یادوی. نو زه دَ ده سره یم. که دے ما په زړه کښ یادوی نو زه یے په زړه کښ یادوم او که دے ما په ګډه کښ یادوی نو زه یے دَ ده نه په غوره ګډه کښ یادوم چه فرښتے دی. او که دے ما ته یو لیښت نزدے شی نو زه ورته څنګل نزدے کیږم. که دے یو څنګل ما نزدے کیږی نو زه ورته یو قلاچ رانزدے کیږم. او که دے ما ته په تلا سره راځی نو زه په منډه ورځم.

فائده:۔ دَ خدائ زموږ سره معاملے مطلب دا دے. چه دَ ده دَ رحمت امید لرل پکار دی ناامیدی ترے نه ده پکار. دا صحیح ده. چه موږ دَ ګناهونو نه ډک یو. او سزا به دَ ګناهونو په برابر وی. خو کیدے شی چه الله پاک دے رحم اوکړی. او معافی اوکړی. ځکه چه بے دَ شرک نه خدائ که او غواړی نو ګناه بخی. نو ګویا ایمان دَ ویرے او دَ امید په مینځ کښ دے. خوږ نبیؐ یو صحابی دَ ځنکدن په حالت کښ اولیده. نو تپوس یے ترے اوکړو چه څه حال دے؟ ده ورته اووے چه دَ الله دَ رحم امیدوار یم. او دَ خپلو ګناهونو نه یریږم. دوی اوفرمائیل. چه په دے حالت کښ چه دَ چا دَ زړه دا حال وی. نو خدائ به دَ ده امید پوره کړی. او چه دَ څه نه یے یره وی. دَ

دے نه به یئے په امن کړی.

په حدیث کښ راځی چه مومن ته خپله ګناه دغر هومره سکاری. چه دے پرے راغورزیږی او فاجرئے د مچ په شان ګنړی چه واوُلت یعنی دے د ګناه هو نو نه پرواه وی. نو مطلب ئے دا دے. چه د ګناه نه یره د ګناه په برابر بکار ده. او د رحمت امید د ه په برابر بکار دے. حضرت معاذؓ په طاعون کښ شهید شو بیدے. چه څنکدن ئے شه نو بے هوشئ به پرے راتله - چه په هوش به شه نو ده به وے. ربه تا ته معلومه ده. چه څما ستا سره محبت دے. او خدایګو چه تا ته معلومه ده. دبیا ئے وے چه مرګه راالله د مبارک شه. څه بنه میلمه ئے خو د لوږے په وخت کښ را غلے. بیائے وے خدایه تا ته معلومه ده. چه زه ستا نه ډیر یریدم. نن ستا نه امید لرم د بخلو. څما ژوند خوښ وو خو د باغونو نهرونو د پاره نه. بلکه په ګرمئ کښ د تندے زغملو د پاره او د دین د محنتونو د پاره او د علماؤ په جمعه کښ د ښخے ناستے د پاره.

او دا د خدائ د بنده سره معامله یواځے د بخنے د پاره نه ده. دعاء روغولے امن او نراخی هم پکښ داخله ده. لکه چه بنده وائی چه څما دعا به ضاخا خدائ قبوله کړی نو دا دعا به ضرور قبوله شی. او که دے وائی چه خدائ خو څما دعا نه قبلوی نو دعا به ئے بیا نه قبلوی. نو بنده د دانه وائی چه خدائ خو څما دعا نه قبلوی. که بنده غریب شه نو د دے هرچا ته په ذکر ده ته مالداری نه راځی. پس خدائ ته د عضو نه کوی. نو خدائ به یئے ترے لرے کړی. خو یو په خدائ ګمان دے او بله د دهوکه او غرور دے. لکه یو بنده وائی. کوه ګناه هو نه الله غفور دے. دا شیطانی دهوکه ده.

دویم د دے حدیث مضمون دا دے. چه خدائ وائی چه زه د بنده سره یم د دے مطلب د خدائ د رحم په ده نازلیده دی. او د ده طرف ته خصوصی د خدائ توجه ده. دریم د دے ذکر کونکی ذکر په فرښتو کښ خدائ په فخر سره دا سے کوی چه ته ګوره په بنیادم کښ د ګناه خواهشات شته. او سره د دے دے ګناه پریږدی او د ذکر شغل کوی. او د انسان عبادت د فرښتو نه څکه غوره دے. چه دی د غیبو په ایمان ذکر کوی. او فرښتے خو هر څه قدرتونه په مخامخ وینی. نو د دوی عبادت ذلیده دے. نو خدائ فرښتو ته په فخر سره ذکر کوی چه عبادت ته ښه وینئ.

څلورم دَ خدائ دَ نزدے والی مطلب دا دے. چه څومره بنده خدائ ته توجه کوی دومره دَ خدائ رحمتونه دَده طرف ته متوجه وی. نو څومره چه څوک دَ خدائ توجه ځان طرف ته کول غواړی دومره دِ بنده دَ خدائ طرف ته توجه اوکړی.

پنځم دَ فرښتو غوره والے دے. نو هغه دَ دوی دَ معصوم والی په وجه دے چه هیڅ ګناه نه کوی. او اکثرے فرښتے دَ اکثرو مؤمنانو نه غوره دی. اګر که پیغمبران دَ دوی نه غوره دی.

(۲) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ شَرَائِعَ الْاِسْلَامِ قَدْ كَثُرَتْ عَلَيَّ فَاَخْبِرْنِيْ بِشَيْءٍ اَسْتَنُّ بِهٖ قَالَ لَا يَزَالُ لِسَانُكَ رَطْبًا مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ (احمد)

دَ عبد الله بن بسر نه روایت دے. ده وے چه یو سړی اووے. چه اے رسوله دَ شریعت کارونه ډیر دی. ماته داسے کار اوښایه چه هغه څله مشغله اوګرځوم. خوږ نبیؐ ورته اووے چه هر وخت دَ خدائ ذکر کوه.

حضرت معاذؓ دَ خوږ نبیؐ نه دَ رخصتیدو په وخت کښ دَ خدائ سره دَ محبوب عمل دَ خدائ هر وخت ذکر ښودلے وو. تر دے چه مرګ در باندے په دے حالت کښ راشی دا معاذؓ یمن ته تلو نو ده سوال کړے وو. او دے تبلیغ او تعلیم دَ کولو ته ورتلو. په شریعت کښ په هره خبره کښ کمال حاصلول ګران وی. نو ځکه ده دا پوښتنه اوکړو چه نو د حکمونه به دَ شریعت کوم خو چه کمال په کوم کښ حاصل کړم. په بل حدیث کښ راځی چه په ذکر مشغوله ژبه دَ دنیا او آخرت دواړو ښه والے دے. بل چه ژبه شکر اوباسی بل چه وجود محنت کوی. بل چه ښځه دَ خاوند په مال کښ خیانت نه کوی. "رَطْبُ اللِّسَان" (هر وخت ذکر کونکے) په دے خوږ والی چه دَ ذکر نه بنده ته حاصلیږی عاشقان پوهیدے شی. او دا داسے خوږ والے دے. چه دَ حلوا شاه حلق هم دَ دے په خوند او خوشحالی پوه شی. دَ خدائ دَ محبت نخه دَ خدائ دَ ذکر سره محبت دے. او دَ الله سره بغض دَ الله ذکر سره بغض دے. ابودرداءؓ اووے چه دَ چا ژبه دَ الله په ذکر خوندوه اخلی. هغوی به په خندا جنت ته داخلیږی.

(۳) عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم اَلَا اُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ اَعْمَالِكُمْ وَاَزْكَاهَا

دَ ابودرداءؓ نه روایت دے ده وے چه خوږ نبیؐ وے چه زه تاسو دَ داسے عمل نه خبر نه کړم چه ډیر

عِنْدَ مَلِيْكِكُمْ وَ اَرْفَعُهَا عِنْدَ دَرَجَاتِكُمْ وَ خَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ اِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَ الْوَرِقِ وَ خَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ اَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ فَتَضْرِبُوْا اَعْنَاقَهُمْ وَ يَضْرِبُوْا اَعْنَاقَكُمْ قَالُوْا بَلٰى قَالَ ذِكْرُ اللّٰهِ ـ

غوره او پاک دے. ستاسو د درجې سره ستا خومرې پورته کونکے دے. ستاسو د پاره د سرو سپینو د خیرات نه غوره دے. او د دے نه چه تاسو د کافرانو سره غزا کوئ. او یو بل په ستمو نو وهئ؟ دوی او وئیلے ولے نه! خو بنئ او و د خدائ ذکر کوئ

فائده:- خو دا د عام حالت خبره ده. کنې په وقتی ضرورت کښې خیرات او جهاد د ټولو نه غوره او ګرځی. ځکه چه په بعض احادیثو کښې د صدقې او جهاد غوره والے هم بیان شوے دے. نو د الله ذکر دائمی بنه دے. او صدقه او جهاد وقتی طور سره بنه شی ذکر د زړه داسې صفائي کوی. لکه صابون چه جامه صفا کوی. او په دے د دوزخ د عذاب نه بنده بچ کیږی. د هر عمل د پاره اخلاص ضروری دے. او د اخلاص د پاره د زړه صفائي پکار ده. او د زړه صفائي په ذکر راځی. ځکه صوفیان وائي. چه د ذکر نه مراد د زړه ذکر دے. او همغه داسې چه زړه هر وخت د خدائ سره نښتے وی. دا قسم بنده به بیا عبادت څه رنګه پریږدی. ځکه چه اندامونه خو د زړه تابع دی. نو چه زړه د خدائ سره مشغوله شه. اندامونه خامخا د خدائ په عبادت کښې لګیا خوښ وی. حضرت سلمانؓ به وے چه خدائ په خپله وائي وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ. نو د ذکر نه غوره بل څیز کوم کیدے شی. د زړه ذکر او وه لکه حصے د خدائ لګخت نه غوره بنودلے شوے دے. که دښمن په مسلمانانو حمله اوکړه او د دوی مخے ته په سوکښې څوک او درېږی. نو په دے وخت کښې د ضرورت په وجه دا څوکئ د مونځونو نه هم غوره ده.

(۴) عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ لَيَذْكُرَنَّ اللّٰهَ اَقْوَامٌ فِي الدُّنْيَا عَلَى الْفُرُشِ الْمُمَهَّدَةِ يُدْخِلُهُمُ اللّٰهُ فِي الدَّرَجَاتِ الْعُلٰى (ابن حبان)

ابی سعیدؓ خدری وائی چه خوږ نبیؐ وے چه څه قومونه به په نرمو بسترو د خدائ ذکر کوی. نو دوی ته به الله لوئے مرتبې ورکوی.

فائده:- د جنت مرتبې د دنیا د عبادتونو په تکلیف حاصلیږی. ولے د الله د ذکر دا برکت دے. چه که بنده په نرمو بسترو پروت وی. او ذکر کوی. نو سره د آرام نه ئے

دَ لويو مرتبو حق ادا وکړي. دا ذاکرين دي چه فرښتې په لارو او بسترو کښې دَ دوی سره مصافحې کوی. دے ذاکرينو ته چه هر وخت ذکر کوی "مفرد" وائي. ابو درداؓ به وے چه څوک په خوشحالو کښې دَ خدائ ذکر کوی دا به يې په سختو کښې پکار شي. دَ دے قسم خلقو ملا تړلے دَ سختئ په وخت کښې سفارش کوی. او چه په خوشحالئ کښې ذکر نه کوی نو په سختئ کښې ملا تړلے دَ دوی په آواز توجه نه کوی. ابن عباسؓ به وے. چه دَ جنت په دروازو کښې يوه دروازه دَ ذاکرينو دپاره ده. دے ذاکرينو ته خوږ نبيؐ مخکښ تلونکي فرمائيلي دي.

(۵) عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلعم مَثَلُ الَّذِيْ يَذْكُرُ رَبَّهٗ مَثَلُ الْحَيِّ وَالَّذِيْ لَا يَذْكُرُ رَبَّهٗ مَثَلُ الْمَيِّتِ (بخاری)

ابو موسیٰؓ اشعری وے چه خوږ نبيؐ وے چه دَ ذکر کونکو مثال دَ ژوندی هسے دے. او د نه ذکر کونکی دَ مړ هسے دے.

فائده:- ژوند دَ هر چا خوښ دے. او مرګ يې بد ی شي نو ذاکر ژوندے دے. او نه ذکر کونکے مړ دے. په ذکر زړه ژوندے وی. نو ځکه دے ګويا ژوندے دے. او چه دَ ده زړه ژوندے شه نو که ده ته چا نقصان او رسوو نو دے به دَ دے بدل داسے بيا مومی. لکه دَ ژوندی نه چه بدل مومندے شی. او چه دَ نه ذکر په وجه مړ وی نو که ده ته چا تکليف او رسوو. نو دے به هيڅ نقصان او نه مومی. صوفيان وائي چه دَ دے نه مراد دَ هميشه ژوند دے. چه په ذاکرينو مرګ نه راځي دوی هميشه ژوندی وی. لکه دَ شهيدانو په باره کښې خدائ وائي چه دوی مړه نه دی. دوی خاص قسم ژوند لری.

حکيم ترمذی وائي. چه په ذکر زړه نرم او تر وی. کښې دَ نفس ګرمی او دَ شهوت په اور زړه اوچ شي. او دَ دے په وجه ټول اندامونه اوچ کلک شي. بيا ورته عبادت کول داسے ګران شي. لکه اوچ لرګے چه بيا په ګکولو ماتيږی. دے صرف دَ سوزولو قابل وی.

(۶) عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم لَوْ اَنَّ رَجُلًا فِيْ حِجْرِهٖ دَرَاهِمُ يَقْسِمُهَا وَاٰخَرُ يَذْكُرُ اللهَ لَكَانَ الذَّاكِرُ لِلّٰهِ

ابو موسیٰؓ وے چه خوږ نبيؐ وے. چه که دَ يو سړی په غيږ کښې مال وی او دا ويشی او بل دَ خدائ ذکر کوی. نو دا ذکر کونکے دَ ده نه

اَفْضَلُ ۔ (طبرانی)

غوره دے۔

فائده :- خیراتی لګښت که ډیر ښه دے۔ خو ذکر د دیته غوره دے۔ او هغه مالدار ډیر خوش قسمته دے۔ چه هم خیراتونه کوی او هم ذکر کوی۔ خدائی نعم هره ورځ په خلقو بخښنه کوی۔ خو د خدائی په بخښنو کښ چه خدائی چاته د ذکر توفیق ورکړی دا ډیره لویه بخښنه ده۔ کوم خلق چه تجارت زراعت او ملازمت ته ډیر ډیر وختونه ورکوی که د ذکر د پاره دوه درې ګهنټې ورکړی چه خدائی ته دومره محبوب دے۔ نوګهرانه خبره نه ده۔

او د دے ذکر د پاره د وختونو علم په ګهړیا په ستورو او نمر باندے حاصل کړی۔ خو ډیر ښې والی چه په کومه زمکه ذکر کیږی۔ نو د زمکے دا حصه په نورو حصو فخر کوی۔

(۷) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَنْ یَّتَحَسَّرَ اَهْلُ الْجَنَّةِ اِلَّا عَلٰی سَاعَةٍ مَرَّتْ بِهِمْ لَمْ یَذْکُرُوا اللّٰهَ فِیْهَا

معاذ بن جبل رض وے۔ چه خوږ نبی وے۔ چه جنتیان به په هیڅ خیز افسوس نه کوی۔ بے د بے ذکره وخت نه۔

فائده :- او داځکه چه دے هلته د ذکر ثوابونه او وینی۔ لو دوی به وائی چه که دغه وخت موبے ذکره نه وے تیر کړے۔ نو نن به د ډیرو اجرونو حقدار وو۔ ابن حجر په منبهات کښ د یحیٰی بن معاذ رازی رح دا مناجات لیکی۔

اے الله حُما هغه شپه نه ده خوښه چه ستا راز و نیاز پکښ نه وی۔ او هغه ورځ چه عبادت پکښ نه وی۔ او آخرت م هغه خوښ دے۔ چه ستا معافی پکښ وی۔ او په جنت کښ م ستا دیدار خوښ دے۔

حضرت سرّی د جرجانی قصه کوی۔ چه د ځلوبت کاله د ډوډۍ په ځائ ستوان پیکل۔ چه په ډوډۍ خوړلو او ځان کال ا ره سبحان الله" ویلو پاتے کیږی۔

بعض حضراتو به چیلے خبرے په کاغذ لیکلے۔ او بیا به یے داکتے چه څومره م پکښ غیر ضروری خبرے دی۔ یا الله زموږ په حال رحم اوکړے۔

(۸) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ وَاَبِیْ سَعِیْدٍ اَنَّهُمَا شَهِدَا عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صلعم اَنَّهٗ قَالَ

ابو هریرة او ابو سعید دواړو داګواهی کوله چه موږ د خوږ نبی نه دا سے اوریدلی دی۔

لَا یَقْعُدُ قَوْمٌ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ إِلَّا حَفَّتْهُمُ
الْمَلَائِکَةُ وَغَشِیَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَنَزَلَتْ
عَلَیْهِمُ السَّکِیْنَةُ وَذَکَرَهُمُ اللّٰهُ فِیْمَنْ
عِنْدَهٗ۔ (احمد)

چه دوی وئے کوم یو فقیر چه دَ خدایٔ په ذکر
کښې لګیا دی. نو فرښتے دَ ټولو طرفونو نه دوی
راګیر کوی. او په رحمت کښې پټ شی. او په دوی
دَ زړه قرارے نازلیدل شروع شی. او خدایٔ
په خپل مجلس کښې دَ دوی ذکر په فخر سره کوی

حضرت ابوذرؓ وائی. چه خوږ نبیؐ وئے. چه زۀ تاسو ته دَ پرهیزګارئ وصیت کوم. دا دَ هر خیر ویخ دے. او دَ قرآن دَ لوستو او دَ الله ذکر خاص خیال کوه. په دے به ستاسو ذکر په اسمانونو کښې کیږی. او په زمکه کښې به دَ رڼا سبب وی. ډیر وختونه چپ اوسه. په دے شیطان لرے کیږی. دا دَ دین دَ کار مدت ګار دے. په ډیره خندا زړه مړ کیږی. دَ مخ نور پرے ځی. غړاکوه دا ځکه دَ امت فقیری ده. دَ عاجزانو سره محبت کوه. او دَ دوی سره ناسته کوه. او دَ ځان نه په کم خلقو نظر کوه. او دَ ځان نه بره خلقو ته مه ګوره. په دے به دَ خپلو نعمتونو بے قدری اوکړے. دَ خپلوانو سره خپلولی کوه. اګر که دوی در سره قطع کوی. په حق کښې وینا کوه. که چا درته په دے ترخه خبره اوکړه. نو صبر کوه. په خدایٔ خبره کښې دَ چا دَ ملامتیا پروا مکوه. چه خپل عیب ته ګورے نو دَ نورو دَ عیبو نو نه به اوډګا رېږې. او چه کوم ګناه په خپله کوے. نو په دے بل چا ته قهر مه کوه. اے ابوذره! دَ ښه تدبیر نه زیاته هوښیارتیا نشته. او دَ ناجائزو کارونو نه بچ کیدو نه زیاته پرهیزګاری ده. او دَ ښه خوئی برابر شرافت نشته.

فائده:- دا قلارے یو خاص قسم رحمت دے. دا دَ ملائکے په ذریعه راکوزیږی. دَ ذاکرینو دَ ملائکو په مخکښې ذکر په دے وجه دے. چه دَ دوی عبادت سره دَ موانعو نه دے. او دَ ملائکو عبادت بے مانعه دے. نو دَ دوی عبادت دَ ملائکو نه زیات ښه دے.

په حدیث کښې راځی. چه خدایٔ جنت او دوزخ جوړ کړه. نو جبریلؑ ئے دَ دے کتو ته اولیږه. او خدایٔ ترے تپوس اوکړه. چه وایه کنه بنی آدم به دَ دے په باب کښې څه کوی. ده وے چه خامخا به دوی جنت ته ځی او دوزخ ته به نه ځی. ځکه چه جنت

دَ نعمتونو ډکه دے ۔ او دوزخ دَ عذابونو مقام دے ۔ بیا خدائی دَ جنت نه چاپیره سخت محنتونه ګرځولی دی ۔ او دَ دوزخ نه چاپیره دَ زړه دَ خوښے څیزونه اوګرځولے شو ۔ نو جبریل دَ دے په لیدو اووے ۔ چه اوس خو جنت ته تله ګران دی ۔ او دوزخ ته به اکثر خلق ورځی ۔ نو په دا سے حالاتو کښ عبادت کول او دَ بدو نه بچ کیدل ډیر لوئی همت دَ ځکه چه الله دَ فرښتو یو مخلوق دَ ذاکرینو په خبر سره ذکر کوی ۔ دَ ذاکرینو دَ طلب دَ پاره خاص قسم ملائکے مقرر دی ۔ لکه مخکښ به راشی ۔

(۹) عَنْ مُعَاوِيَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم خَرَجَ عَلٰی حَلْقَةٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ مَا اَجْلَسَكُمْ قَالُوْا جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللّٰهَ وَنَحْمَدُهٗ عَلٰی مَا هَدَانَا لِلْاِسْلَامِ وَمَنَّ بِهٖ عَلَيْنَا قَالَ آللّٰهُ مَا اَجْلَسَكُمْ اِلَّا ذٰلِكَ قَالُوْا اللّٰهُ مَا اَجْلَسَنَا اِلَّا ذٰلِكَ قَالَ اَمَا اِنِّیْ لَمْ اَسْتَحْلِفْكُمْ تُهْمَةً لَكُمْ وَلٰكِنْ اَتَانِیْ جِبْرِيْلُ فَاَخْبَرَنِیْ اَنَّ اللّٰهَ يُبَاهِیْ بِكُمُ الْمَلٰٓئِكَةَ ۔ (احمد)

دَ معاویہؓ نه روایت دے ۔ چه خوږ نبیؐ یو کس ار دَ ملګرو په یوے حلقے ورغے ۔ دوی ترے تپوس اوکړو چه تاسو ولے ناست یئ ۔ دوی وے ۔ دَ خدائی ذکر او دَ اسلام په هدایت دَ ده ثناء وایو ۔ دوی وے چه خدائیګو چه تاسو دَ دے دَ پاره ناست یئ ۔ ملګرو بیا اووے ۔ او خدائیګو خوږ نبیؐ ورته اووے ۔ چه ما درته څکه قسم درکړو ۔ چه جبریل راته اووے چه په تاسو خدائی دَ فرښتو په مجلس کښ فخر کوی ۔

فائده :۔ خوږ نبیؐ چه دَ جبرائیل دا خبره واوریده ۔ چه خدائی په دے حلقے دَ فرښتو په مخکښ فخر کوی ۔ نو دوی وے چه ډیره دا به صرف دَ ذکر په وجه وی ۔ که بله څه وجه به یئے هم وی ۔ نو په دے وجه دوی اصحابو ته قسم ورکړو ۔ ګویا معلومه شوه چه دَ دوی دا ذکر دَ خدائی دَ خوښے خبره ده ۔ او دا څکه چه په انسان کښ نفس دے ۔ او باهر ورته شیطان دښمن ولاړ دے ۔ او دے دَ دوی مقابله کوی ۔ او دَ دنیا ضروریات او خواهشات پریږدی ۔ او ذکر کوی نو دا قابل تعریف خبره ده ۔ او که ملائکے عبادت کوی ۔ نو دوی دَ دے تولو خبرو نه پاکے دی ۔ څکه چه عبادت یئے په امان دے ۔

(۱۰) عَنْ اَنَسٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صلعم قَالَ مَا مِنْ قَوْمٍ اِجْتَمَعُوْا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ لَا يُرِيْدُوْنَ بِذٰلِكَ اِلَّا وَجْهَهٗ اِلَّا نَادَاهُمْ مُنَادٍ مِّنَ

انسؓ دَ خوږ نبیؐ نه روایت کوی ۔ دوی وے چه کم هغه قوم چه صرف دَ الله دَ رضا دَ پاره راجمع شی او دَ خدائی ذکر کوی ۔ نو دوی ته یو اعلانچی

السَّمَاءِ اَنْ قُوْمُوْا مَغْفُوْرًا لَّكُمْ قَدْ بُدِّلَتْ دَ اسمان نه آواز کوی. چه پاسئ تاسو ته بخنه
سَيِّاٰتُكُمْ حَسَنَاتٍ۔ (احمد) اوشوه. او ستاسو بدئ په نیکو بدلے شوے.

او چه دا سے ناسته وی. چه په دیکښ هیڅ ذکر نه وی. بلکه د تباهئ سبب او گرځی. دے قسم جمع ته د مرخره د پاسه جمع و ئیلے شوی ده. او د هر مجلس د ختم کیدو نه روستو دا دعا لوسته یکار دی. چه دا د مجلس د غلطو کفاره او گرځی. چه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ. نو سبه مجلس هغه دے. چه په هغے کښ ذکر او درود وی. د غسے مسافر و ته لار ښودو ده او د نا جائزو نه ستر گے بندول دی.

حضرت علیؓ د مجلس نه د پاسیدو دعا سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ تر آخره و ئیلے ده. د بدو په نیکو بدلیدل د بدو معافی او د نیکو پاتے کیده دی. یا دوی ته د بدو په ځائ د نیکو کولو توفیق ور کړے شی. او د بدو په ځائ یکښ د نیکو عادت پیدا شی بزرگان د عادتونو بدلول نه شی کولے. دوی د دے رُخ بدل کړی. لکه یو بنده به هر وخت غصه کوله. او س د ده غصه د الله په نافرمانئ راځی. د ظلم او د تکبر د غصے په ځائ یے رُخ بدل شه. لکه د حضرت عمرؓ غصه وه. چه د مسلمانانو په تکلیف به رضا وو. د خوږ نبیؐ په صحبت د ده غصه په کافرانو شروع شوه. نو عادت نه بدلیږی. بلکه د ده رُخ بدل شی. بل که خدائ ته د یو بنده یو عمل دا سے خوښ راشی چه په دے وجه ده ته د بدو په بدل کښ نیکی ور کړی. نو دا هم د خدائ د رحم نه لرے خبره نه ده. هغه مالک دے. قادر دے. د هغه د رحم او بخنے دروازه څوک بندولے نه شی. لکه په بهجة النفوس کښ د حساب مختلف طریقے دی. د بعضو سره به د رحمت په پټو پردو کښ دلته حساب او شی. چه دوی ته به گناهونه پټ او ښودے شی او دے به پرے اقرار او کړی. او دے به یوئ شی چه هلاک شوم. نو خدائ به ورته او وائی چه ما به تا په دنیا کښ پرده اچولے وه. چه زه ستار یم. نن یے هم معاف کوم. دے چه بیرته لاړ شی نو خلق به وائی چه څه خوش قسمت دے. ته گوره گناه یے اصلا وو نه. او دویم قسم به هغه وی. چه واړه او لوئ گناهونه به رازی. نو خدائ به او وائی چه د ده واړه گناهونه په نیکو بدل کړئ. نو دے به او وائی. چه ځما څو لوئ گناهونه

هم دی. چه د هغې ذکر او نه شه. د اقسم ذکر په حدیث کښ د آخری جهنم نه د راوتی او آخیری جنت ته د داخل شوی په قصه کښ هم بیانیږی. چه دے به اُوائي. چه تا سو چه څلوا پر لوګناهونه په نیکو بدل کړل. لو څما خو لو ر ګناهونه هم پاتے دی. په دے خوره نبي ﷺ موسکے شه.

خو دا قسم حالات ګوره چه دچا د پاره پید اکیدے شي. ځکه د الله د فضل امید پکار دے. خو په دے وجه په ګناهونو زړه ورتیا کول نه دی پکار. او دا بدی په نیکو بدلیده د اخلاص په سبب کیدے شي. او دا اخلاص هم د الله په عطا کیدے شي او د اخیری د جهنم نه وتونکی یو او نورو کے او مختلف قسم خلق کیدے شي. د خدائ سره د اخلاص عزت دے. او د اخلاص هم درجے دی. لو د دے درجو په برابر به بخنه وی. اخلاص د دینا او د حالت په یو والی راځي.

په بهجة النفوس کښ د یو باچا قصه ده. چه د ده د شرابو ډک جهاز روان وو. چه یو کس پرے ورغے او ټول منګټی یے ماتے کړے. خو یو ه یے پریښوده. او ده ته چا خبره نه شه کولے. بلطرفته دا باچا ډیر سخت وو. باچا په دے خبره ډیر حیران شه. ده دا سړے راو غوښتو او تپوس یے تر ے او کړو. چه دا ولے؟ او دا یو ه د ولے پریښوده؟ ده ورته اووے. چه څما زړه را او غوښته نو ما دا ټوکے ماتے کړے. او ستا چه څه زړه غواړی هغه ته او کړه. او یو ه م حُکم پریښوده. چه دا ټولے م د اسلامی عزت په وجه ماتولے. خو چه یو ه پاتے شوه. نو څما دا خیال راغے چه بیره څه سنه کاره د او کړو. په دے م دا یو ه پریښوده چه په دیکښ څما د نفس د خوشحالئ دخل راغے. لو باچا حکم او کړو چه دے پریګدئ دے مجبور وو.

په احیاء العلوم کښ د یو عابد قصه ده چه ده ته چا اووے. چه دلته څه خلق د یوے ونے عبادت کوی. دے او قهریدو. او تبرے په لاس په دے ونے پسے روان شه. شیطان ورته د یو بوډا په شکل کښ مخامخ شه. او تپوس یے او کړو چه ته چرته ځے؟ ده ووے. دغه ونه پریکوم. شیطان ورته اووے. چه ته ورته څه کوے. څه خپل عبادت کوه. د دے د طلبه کار د پاره دخا عبادت پریښوده. ده ووے دا هم عبادت دے. شیطان ورته اووے چه زه خو تا

دے ته نه پریږدم. په دیکښې دواړه په پرځولو شو. عابد شیطان را اوپرزولو. په سینه یې کیناسته. شیطان د ده خوشامنده شروع کړه. او ده ته یې اووے چه ما پریږده. او ځما یوه خبره واوره. وے کوره داؤنه پریکول به ینه کار دی. ولے چه تا خو فرض شته دی. تا ته په دے څه نقصان نشته ته خو یې عبادت نه کوے. د خدائ ډیر پیغمبران دی که خدائ غوښتلی نو پیغمبر به یې را الیږلے وو په دیکښې دوی بیا په پرزولو شو. عابد دے بیا را اوپرزولو. شیطان ده ته اووے چه کوره ستا د فائدے خبره تا ته کوم. شیطان ورته اووے چه کوره غریب سړے یې په قوم بوجهي یې ته داکار مه کوه. زه به هره ورځ ستا د بالښت د لاندے درے اشرفئ پږدم. چیل ضرورت پرے هم پوره کوه. او خپلو انو ته ترے هم ورکوه. فقیرانو ته خیرات ورکوه ډیر ثواب به درکیږی. د ونې په پریکولو کښې یو ثواب دے. او په دیکښې ډیر ثوابونه دی. او که نه ونه پریکیږے نو خلق به بیا اوکړی. په عابد دے وینا اثر اوکړو. او دا خبره یې او منله او را بیرته شه. شیطان د ده دریے ورځے اشرفئ د ده د بالښت د لاندے کیخودے. خو بیا یې لس کړے. نو عابد د قاره شه. او بیا یې تبر را واخستو. او را روان شه. بوډها ورته بیا مخے ته راغے. وے چرته ځے؟ ده وے چه هغه ونه پریکوم. آخر په پرځولو شو. په دیکښې عابد لاندے او بوډها پرے باندے شه. او د عابد په سینه کیناسته. عابد حیران شه. چه هغه پله ورځ زه غالب ووم. نن بوډها څرنګ غالب شه. بوډها ورته اووے. چه کوره عابده هغه پله ورځ ته خالص د الله د رضا د پاره راغلے څکه ته زور ور وو دے. او زه کمزورے وم. او نن خو ستا اشرفئ بندے شوے. نو ځکه په دے نے پیسے ځے. اخلاص د پاتے نه شه او ته کمزورے شوے. نو تا سو او لیدل. چه هر قسم قوة په اخلاص کښې دے. الله د دا زمونږ نصیب کړی.

عن معاذ ابن جبل قال قال رسول الله صلعم ما عمل آدمی عملاً انجی له من عذاب القبور ذکر الله (احمد)

د معاذ بن جبل نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبي وے. د خدائ د ذکر نه زیات بل عمل د یو بنده د پاره د عذاب د قبر نه خلاصونکے نشته.

فائده:- د قبر عذاب د احادیثو نه معلوم دے. چه دا ډیر سخت څیز دے. حضرت عثمانؓ چه په قبر ته ورتلے. نو ډیر به یې ژړل. ترد ے چه ږیره به یې لونده شوه. چا ورته اووے چه ته د جنت او دوزخ په ذکر دومره نه ژاړے څه وجه ده؟ دا به یې وے چه قبر د آخرت په منزلونو کښې د ټولو نه لومړے منزل دے. چه د دے نه خلاصے اوشی نو د هر تکلیف نه به خلاصے اوشی. او خوږ نبیؐ هم دے ته سخت مقام ویلے دے ځکه به خوږ نبیؐ به هر مانځه کښې د قبر د عذاب نه پناه غوښته. او خوږ نبیؐ به وے چه تاسو به بنګول پریږدی که نه ما به درته په دعا د خدائی د طرف نه د قبر عذاب بنودلے وو. د قبر چیغې بے د بنی آدمو او پیریانو نه نور هر څوک اوری. یوکل او د خوږ نبیؐ آس د قبر د عذاب د چغو د اوریدو په وجه تریدلے وو.

خوږ نبیؐ یو ګذار څه خلق په خندا اولیدل. نو دوی اووے چه که ډیر ډیر مرګ یاد وی نو بیا به داسے نه خاندئ. قبر هر وخت دا اعلان کوی. چه زه د غربتې کور یم. زه د چینجو او خاورو کور یم چه نیک بنده په کښې ښخ شی نو دے ده ته پخیر راغلے. او ده ته وائی چه ته به چه ځما په څکه ګرزیدے نو ته ځما ډیر خوښ وے نن به ته ځما ښه سلوک اووینې. نو قبر به ورته ښه ارت شی. او د جنت یو دروازه به ورته پرانستے شی. چه خوشبوئی به ورته ورځی. او چه ناکاره بنده ښخ شی نو قبر ورته وائی. سپیره ته په د زمکے په مخ بدی شوے. نن راته راغلے زه به در سره اوګورم. نو زمکه په راغونډه شی. ترد ے چه پښے ورته ماتے کړی بیا به څه کم سل اژدها ګانے مقرر کړے شی. او دے به چیچی. د غښے به تر قیامته وی. او دا اژدها داسے زهرجن یو کی لری. چه که یو پو کے د دنیا مخ ته او کړی نو زمکه به بیا واښه راو نه ټوکوی. خوږ نبیؐ ځکه وے. چه دا یا د جنت باغ دے یا د دوزخ کنده ده. د قبر عذاب خوږ نبیؐ د ډیرو بنو لونه د ښکیدو په وجه او د چغلئ په وجه بیان کړیدے. او ډیرو برلو خو په اولاړے کول ار او دس نه او چول نن و راځے تاسو ویښئ. که دوی ته د استنجا د پاره او ویلے شی. نو په دوی پورے ټوقے کوی. د دے عذاب که ګتا هو نه اسباب دی. نو د غښے د دینه د بچ کیدو د پاره هره شپه تبَارَكَ الَّذِي ویل هم یو علاج ښودلے شوے دے. لکه چه تاسو ذکر

دَ عذاب قبر نه دَ بچ کید و سِیه سبب اولو ستہ۔

(۱۲) عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صلعم لَیَبْعَثَنَّ اللّٰہُ قَوْمًا یَوْمَ الْقِیٰمَۃِ فِیْ وُجُوْھِھِمُ النُّوْرُ عَلٰی مَنَابِرِ اللُّؤْلُؤِ یَغْبِطُھُمُ النَّاسُ لَیْسُوْا بِاَنْبِیَآءَ وَلَا شُھَدَآءَ فَقَالَ اَعْرَابِیٌّ حَلِّھِمْ لَنَا نَعْرِفْھُمْ فَقَالَ ھُمُ الْمُتَحَابُّوْنَ فِی اللّٰہِ مِنْ قَبَائِلَ شَتّٰی یَجْتَمِعُوْنَ عَلٰی ذِکْرِ اللّٰہِ یَذْکُرُوْنَہٗ (ترغیب)

دَ ابو درداءؓ نه روایت دے۔ دَه وَے چه خوبِ نبیؐ وے۔ چه دَ قیامت په ورځ به دَ بعض قومونو دا سے حشر اوشی۔ چه دَ دوی مخونه به بریښنا کوی۔ او دَ ملغلرو په ممبرونو به ناست وی۔ او خلق به ورسره یو تسم حسد کوی۔ او دوی به پیغمبران او شهیدان نه وی۔ چا وے دَ دوی حال خو بیان کړئ۔ خوب نبیؐ او وے چه دا د خدائے دَ پاره محبت کونکی دَ مختلفو قبیلو جمع شوی دی دَ خدائے ذکر کوی۔

فائده۔ نن په خانقاهو نوکښ په ناستو خلقو خندا کلے کیږی۔ خو صباته به دَ دے ذاکرینو حال او وینی۔ چه په پوزو ناست ذاکرین به څومره عزتونوکښ وی۔ او دا سپورے دیونکی به خوار و زار وی۔ ع

فَسَوْفَ تَرٰی اِذَا انْکَشَفَ الْغُبَارُ اَفَرَسٌ تَحْتَ رِجْلِکَ اَمْ حِمَارٌ

"چه ګرد لرے شی نو او به وینے چه ستا د لاندے اس دے که خر دے"

حدیث دے۔ چه په کوم کورکښ ذکر کیږی نو دا کور به اسمان کښ دا سے بریښنا کوی۔ لکه ستوری په زمکه بانده۔ په مجلسونوکښ ذکر او ځان ته ذکر دَ دین دَ کلکوالی یو ذریعه ده۔ او کله کله دَ ذاکرینو دا ښرا په کشفی رنګ کښ بعض حضرات دینی عبدالعزیز دَ باغ یوا می بزرګ وو۔ ده به قرآن شریف، حدیث قدسی او موضوعی حدیث په اوریدو سره سنو ده۔ ده به وے دَ قرآن په لوستلو به رڼرا او په حدیث دَ دے نه کمه رڼرا، او په موضوعی حدیث کښ او رڼرا نه معلومیږی۔ یو ګل ار مولانا خلیل احمد نور الله مرقده طواف کوو۔ نو دَ ده دَ طواف انوار مولانا محب الدین صاحب اولیدل۔ او دوی او وے چه اوس خو د مطاف نه پوره انوار پوره ته کیږی۔ ده چه دے اولیده۔ نو ده او وے او کنه ولے به نه وی۔؟ مولانا محب الدین دَ کشف خاوند وو۔ ذکر ته په احادیثو کښ ریاط و ټیلے شوید ے

رباط په سرحد کښې دَ غازیانو څوکئ ته وائي۔ چه کافران دَ حملې نه منع کوی۔

(۱۳) عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ اِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوْا قَالَ وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ قَالَ حَلَقُ الذِّكْرِ (ترمذی)

دَ انسؓ نه روایت دے۔ ده وے چه حضور ﷺ وے۔ چه هر کله په باغونو دَ جنت تیرشئ نو په دیکښې سَر کوئ۔ چا ووے دَ جنت باغونه کوم دی۔ دوی اوفرمائیل چه دَ ذکر حلقې دی۔

فائده:- که داسې څوک خوش قسمته وی۔ چه دَ دنیا دَ شغل نه اوزګار شی او دَ ذکر حلقوته ورتیر شی۔ نو دَ دوی سره ناسته دِ لوټ اوکنړی۔ او دے دِ دَ دنیا په جنت کښې داسې کلک کیني۔ لکه څاروے چه دَ شینکی ته په وهلونه اوځی۔ او څله یې په شنو وښو کښې ښخه کړے وی څرېکي۔ څه رنګ چه جنت دَ آفتونو نه بچ وی دغه رنګ دا دَ ذکر حلقه هم دَ آفتونو نه بچ ده۔ ذکر دَ زړه دَ مرضونو لکه حسد، کینه او بغض، علاج دے۔ که دَ دښمن نه تختید و نکے پناه لټوی نو ذاکر په ذکر دَ خدائ په خوا کښې پناه واخستنه۔ نو یوخوا دَ دښمن نه بچ شه۔ او بل خوا یې اینه ملکوتیا نصیب شوه۔ په ذکر سینه پرانستې شی۔ زړه یې روښانه کیږی۔ دَ زړه سختي یې په نرمئ بدلیږی۔ تردے چه علماءُ دَ ذکر نسل فائدے ښودلے دی۔ څومره څومره چه بنده ذکر کوی۔ دومره دومره په ده دَ الله رحمت او دَ ملائکو دعاګانے دَ باران هسې وریږی۔ ځکه خدائ حکم کوی چه يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا۔

(۱۴) عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم مَنْ عَجَزَ مِنْكُمْ مِنَ اللَّيْلِ اَنْ يُّكَابِدَهٗ وَبَخِلَ بِالْمَالِ اَنْ يُّنْفِقَهٗ وَجَبُنَ عَنِ الْعَدُوِّ اَنْ يُّجَاهِدَهٗ فَلْيُكْثِرْ ذِكْرَ اللّٰهِ۔ (طبرانی)

ابن عباسؓ روایت کوی۔ ده وے چه حضور نبیؐ وے۔ هغه څوک چه دَ شپې دَ عبادت دَ محنتونو نه عاجزه وی۔ او دَ بخیلئ په وجه مال هم نه شی لګولے۔ او دَ بزدلئ په وجه جهاد هم نه شی کولے۔ نو دَ الله ذکر دِ ډیر کوی۔

فائده:- دَ هر نفلی عبادت کمے په ذکر پوره کیدے شی۔ خو نبیؐ ذکرته دَ ایمان نخه دیلې ده۔ او په دے بنده دَ نفاق نه بیزاری کوی۔ او په دے دَ شیطان نه بچ کیږی۔ او دَ جهنم اور په ورته نه رسی۔ ځکه ذکر دَ ډیرو نفلی عبادتونو نه

غوره کرزولے شوی دے ۔ اود شیطان دخان نه په تختولو کښې خوخاص اثر لری ۔ حدیث دے ۔ چه شیطان د بنده د زړه سره په کوهونا ست وی ۔ خوچه زړه ذاکر او ویښ نو ذلیل روستو شی ۔ او چه بنده غافله وی نو دے ورته وسوسے اچوی. حُکه صوفیان خپل مریدان په ډیر ذکر عادت کوی ۔ په ذکر زړه داسے کلک شی چه دے د شیطان د وسو سو مقابله کوی ۔ او د خوبږ بنیؐ په صحبت د اصحابو زړونؓ داسے قوی شوی وو ۔ چه هغوی ته د ضربونو لګولو ضرورت نه وو ۔ خو روستو حالات نازک شو ۔ نو صوفیانو په زړه ضربونه لګول ضروری کړل ۔

یو بزرګ سوال اوکړو چه خدایه ماته دا شیطان اوښایه ۔ چه دے وسوسے څه رنګ اچوی ۔ نو ده دا شیطان د زړه نه کینړطرفته د اوګے دلاندے د ماشی په شکل ناست اولیده ۔ چه د ده اوږد شونډ وو ۔ او دا به یے لکه د ستنے زړه ته بوتلو ۔ چه بنده ذکر کوی ۔ نو دے دا شونډ روستو کړی ۔ کنی لکه د ستنے دے زړه ته وسوسے اچوی ۔ او د ګناهو نو دپاره یے تیاره وی ۔ بل حدیث دے ۔ چه دا شیطان د خپلے پوزے مخکښې حصه د بنده په زړه ایښے ناست وی ۔ چه بنده ذکر کوی ۔ نو دے روستو شی ۔ او چه غافل وی نو دے یے نوړی کوی ۔

(۱۵) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰہِ صلعم قَالَ اَکْثِرُوْا ذِکْرَ اللّٰہِ حَتّٰی یَقُوْلُوْا مَجْنُوْنٌ ۔ (احمد)

د ابو سعید خدریؓ نه روایت دے ۔ ده وے چه خوبږ بنیؐ وے ۔ چه ذکر دومره ډیر کوئ چه منافقان خلق درته لیونے اووائی ۔

فائده : ۔ د دے حدیث نه دا معلومه شوه ۔ چه د منافقانو بیوقوفانو په لیونی یا ریاکار ویلو د بنده دا قسم قیمتی دولت نه پریږدی ۔ بلکه دے ته د لازور ورکړی ۔ چه خلق یے پریږدی چه دے خوا په ولس کیږی نه ۔

ابن عباسؓ وے چه خدائی د هر عبادت حد مقرر کړے دے ۔ خو یو ذکر دا سے عبادت دے ۔ چه د دے حد مقرر نه دے ۔ تر دے که عقل یے لاړه نو هم د ذکر کوی. حُکه خدائی وائی ۔ اُذْکُرُوا اللّٰہَ ذِکْرًا کَثِیْرًا ۔ ډیر اد دومره ډیر چه د شپے د ورځے په ځنګل کښې په دریاب کښې په سفر کښې په کور کښې ، په فقیری کښې ، په مالداری کښې په جوړه اوناجوړتیا کښې په روا دیه زوره زوره په هر حالت کښې ذکر کوئ ۔

حافظ ابن حجر په منبهات کښې دَ حضرت عثمانؓ نه نقل کوي. چه وَکَانَ کَنْزٌ لَّهُمَا دَدے یتیمانو هغه خزانه دَ سرو زرو یوه تختئ وه. چه په دے دا اووه کیلے لیکلے شوے وے.

(۱) څه حیرانتیا کوم. چه مرګ پیژنی اوبیا هم خاندي.

(۲) څه په هغه بنده تعجب کوم چه دنیا فاني وینی. او بیا هم دَدے شوق لري.

(۳) څه په دے تعجب کوم چه هر څیز مقدر مني او بیا هم دَ یو څیز په تلوا فسوس کوي.

(۴) څه تعجب کوم چه دَ هر څیز په آخرت کښې حساب مني او بیا هم مال جمع کوي.

(۵) څه تعجب کوم چه یو بنده دَ دوزخ دَ اور نه خبروي. او بیا هم ګناهونه کوي.

(۶) څه تعجب کوم چه بنده خدائ پیژني او بیا هم دَ بل ذکر کوي.

(۷) څه تعجب کوم په هغه بنده چه دَ جنت دَ خوشحالونه خبر دے او د ے دَ دنیا په څیز خوشحالیږي.

تعجب وے چه موږ شیطان دښمن ګڼړو او بیا هم دَ ده اطاعت کوو.

جابرؓ وے چه خوږ نبیؐ وے چه ماته به جبریلؑ دَ ذکر کولو دومره وینا کوله چه ماوے چه دَ ذکر نه سیوا بل څیز دَ نفع نشته.

بنده دَ دَچا دَ ښنو وے نه په خیال ذکر نه کوي. خوکه بے ارادے چا اولیده نو دے دَ بیا ذکر نه پریږدي. چه خلق په ما ته ریا کار اووائي.

عبد الله ذوالبجادین یتیم وو. دے به دَ خپل تره سره اوسیده. خو دے پټ مسلمان شه. نو بیا تره او مور بربنډ او شاړه. دے مدینے منورے ته دَ خوږ نبیؐ په حضور کښې حاضر شه. دے به دَ خوږ نبیؐ په دروازه کښې پروت وو. او په زوره زوره به یئے ذکر کاوه. حضرت عمرؓ اووے چه یره دے خو ریا کار دے. خوږ نبیؐ اووے. نه بلکه دے دَ اَوّاہ بیشو نه دے. دے تبوک په غزا کښې دے وفات شه. اصحابؓ په قبرونو کښې یوه بله اولیده. دوي چه ورغله نو څه ګوري چه خوږ نبیؐ قبر ته کوز شوی دے. او ابو بکرؓ او عمرؓ ته یئے وے. چه دا خپل رورما ته راکوز کړئ خوږ نبیؐ دے په قبر کښې کیخوده. او دا شبیئے اووے. چه اے خدایه! زه دَ ده نه رضا یم ته هم دَ ده نه رضا شه. حضرت ابن مسعودؓ وائي چه په دے ما داخواهش

اوکړو چه ارمان دے. که دا زه هم وے. چه خوب ښځې په قبر کښې ایښے وے. او ما ته یې دعا کړے وے. حضرت فضیل وے. چه یو عمل هم د چا د ښو د ے د پاره مه کوه. او د چا په وجه یې پریږده هم مه. دا دواړه ریا کانې دی او شرک دے.

په یو حدیث کښې راځي چه د بعضو خلقو په لیدو بنده ته ذکر یادشي. گویا ددې د ذکر کونجي وي. او دے قسم خلقو ته ولي د یلے شي. او دے په خلقو کښې غوره بنده دے. د دے قسم بندة په لیدو بنده ته خدائ یادشي. د ده په خبرو په علم کښې ترقي کیږي او د ده په عملونو د آخرت طرف ته شوق پیدا کیږي. او دا صفت په بنده کښې په ډیره ذکر پیدا کیږي. بعضے خلق په زوره ذکر ته بدعت وائي. او دا ناجائز گڼړي. په دے مولانا عبدالحی صاحب سباحة الفکر نومے رساله لیکلے ده. په دے کښې ده په پنځو سوحدیثونو په زوره ذکر ثابت کړید ے. خو دومره خیال د ساتي چه په دے چا ته تکلیف نه وي.

(۱۷) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم يَقُوْلُ سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظِلِّهٖ يَوْمَ لَاظِلَّ اِلَّاظِلُّهُ اَلْاِمَامُ الْعَادِلُ. وَالشَّابُّ نَشَأَ فِيْ عِبَادَةِ اللّٰهِ وَرَجُلٌ قَلْبُهٗ مُعَلَّقٌ بِالْمَسَاجِدِ وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللّٰهِ اِجْتَمَعَا عَلٰى ذٰلِكَ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ وَرَجُلٌ دَعَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ مَنْصَبٍ وَجَمَالٍ فَقَالَ اِنِّيْ اَخَافُ اللّٰهَ. وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَاَخْفَاهَا حَتّٰى لَاتَعْلَمَ شِمَالُهٗ مَاتُنْفِقُ يَمِيْنُهٗ وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللّٰهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ (بخاری)

د ابوهریرةؓ نه روایت دے. ده وے چه ما د خوږ نبيؐ نه اوریدلي دي. دوي د ے چه اووه تنه دي چه دوي به د خدائ په سوري کښې وي. په کوم ورځ چه به بل سورے نه وي یو منصف امام دے. دویم هغه ځوان دے چه خپله ځواني په عبادت کښې تیره وي. دریم چه زړه یې د جمات سره تړلے وي. څلورم چه دوه تنه د خدائ د پاره په محبت جمع کیږي او جدا کیږي. او پنځم چه یوه ښائسته او نصب داره ښځه ورته بلنه اوکړي او دے ترے انکار اوکړي. چه زه د خدائ نه ویریږم. او شپږم چه دا سے خیرات کوي چه یو لاس ئې بل لاس ته نه خبریږي. او اووم چه ځانته ذکر کوي او اوښکے ئې بهیږي.

فائدة :- د ا ونیکو بهینو مطلب دا هم کیدے شي. چه خپل گناه هونه یادوي او ژاړي. یو بزرگ وو. هغه به وے چه زه خپله قبوله دعا پېژنم چا وے څه رنگ

دَه وي چه په کومه دعا خُماد بدن و یخته او دریږي. او زړه م او دَ زړیږي او دَ ستر‌ګو نه م او ښکې لاړې شي. نو دا دعا م قبلیږي.

په دې او و تسو کښ هغه ذاکر و ي. چه ځان ته دَ خلقو نه ذکر کوي. دا دَ اخلاص په وجه کیږي. او ژړا دَ ویرې او دَ شوق دَوجې نه راځي. او په دیکښ ژاړي کړي۔ زمونږ کار دَ شپې په یار پسې ژړا ده ÷ زمونږ خوب هم په اشنا پسې سودا ده

دَ خالي کیدو مطلب که دَ خلقو نه اړخ ته والے دے. نو دَ دے ـــــ دَ الله نه سیوا دَ نورو چا دَ خیالاتو نه خالي کیدل هم مطلب دے. چه په دے حالت کښ او ښاړي که دَ خلقو سره وي که جدا وي. دلته دا دواړه حالتو نه یو برابر وي. رښتیا خبره دا ده چه دا قسم ژړا یو لوئ دولت دے. دا ینده ډیر خوش نصیب دے. چه دا ورقت ورته حاصل شي. دَ دے قسم بنده په باره کښ حدیث دے. چه دے به جهنم ته لاړ شي. چه پئ تُو ته بیرته ورشي. یعني نه شي تلے. او بیا چه دوم او ښاړي. چه او ښکے یې په زمکه تو ئ شي. نو دے خو دَ قیامت دَ عذاب نه خلاص شه مغه دَ خدائ دَ ویرے ژړیدونکے ستر‌ګے او دَ کافرانو نه دَ مسلمانانو ساتونکي ستر‌ګے دَ دوزخ په اور حرام دي. دغسے چه ستر‌ګے دَ حرامو کتو نه ساتي. او چه کومے ستر‌ګے په غزا کښ ړندے شي. یوائے ذکر کوونکے په حدیث کښ داسے دے. لکه چه یوائے دَ کافرانو مقابلے ته ورځي.

(۱۸) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صلعم یُنَادِیْ مُنَادٍ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ
اَیْنَ اُولُو الْاَلْبَابِ قَالُوْا اَیُّ اُولُوا الْاَلْبَابِ
تُرِیْدُ قَالَ الَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ قِیٰمًا
وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰی جُنُوْبِهِمْ وَیَتَفَکَّرُوْنَ
فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ رَبَّنَا مَا
خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا اِلٰی عُقِدَ لَهُمْ لِوَاءٌ
فَاتَّبَعَ الْقَوْمُ لِوَاءَهُمْ وَقَالَ لَهُمْ اُدْخُلُوْهَا
خٰلِدِیْنَ (ترغیب)

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبئ وے. چه په قیامت کښ به یو اعلان کونکے اعلان کوي. چه هوښیاران کوم ځائ دي؟ خلق به وائي چه هوښیاران څوک دي؟ جواب به اوشي چه چا به او لاړے په ناستي او په ملاستي ذکر کوو. او په کائناتو عالم کښ یئے فکر کاوه او دوي به وے چه دا خو بے فائدے نه وي. دَ دوي دپاره جهنډا جوړه کړے شي. چه په دَ پسے به تول ځي او دوي ته به اووئیلے شي. چه همیشه دپاره جنت ته داخل شي.

فائده: د کائناتِ عالم په نظام کښې د غور کولو په وجه د خدائ په معرفت کښې قوت پیدا کیږي. خوږ نبي ﷺ به خپل اصحاب د مخلوقاتو په فکر مشغول ساتل. او د خدائ د ذات د فکر نه به یې منع کول. چه په دیکښې به فکر نه کوئ.

عایشې رض بي بي یوګنډار د خوږ نبي ﷺ دا عجیبه خبره بیانوله. چه یوه شپه دوی ځما سره راغله. ځما سره سملاسته بیا یې اووې پریږده ځه د خپل رب عبادت کوم. نو اودس یې اوکړو او د مونځ نیتیې اوتړه. او ژړا یې شروع کړه. تر دې چه اوښکې مبارکې یې په سینه اوبهیدې. د غسې حال یې په رکوع او سجده کښې هم وو. ټوله شپه یې د غسې عبادت کوو. تر دې چه بلال رض د سحر د مانځه د بللو د پاره راغې. ما ورته اووې چه تاته خو ګناهونه بخلي شوي دي. نو دا ته ولې دومره تکلیف کوې؟ دوی اووې. چه ځه به د دې شکریه نه ادا کوم؟ او دوی اووې چه ما به ولې نه ژړل. نن دا آیتونه نازل شویدي. إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ تر آخره. بیا یې اووې چه د هغې کس د پاره هلاکت دې. چه دا آیتونه لولي او غور او فکر نه کوي.

عامر بن عبد قیس رح چه ما د ډیرو اصحابو نه اوریدلي دي. چه د ایمان رڼا په غور او فکر راځي. ابو هریره رض وې چه یو کس په کوټه برې ملاست وو. او ستورو ته به یې کتل. او وایه به یې دې. چه خدائیګو ځما دا یقین دې. چه ستاسو پیدا کونکې خدائ دې. اے الله نه ما ته بخنه اوکړې. په دې د خدائ رحم د ده طرف ته متوجه شه. او د ده بخنه اوشوه. ابن عباس رض به وې. چه د یوې ګهړۍ غور او فکر د ټولې شپې د عبادت نه غوره دې. او انس رض به وې. چه دا غور د اتیا کاله عبادت نه غوره دې. او دا غور و فکر د ابو درداء ډیر غوره عبادت وو. امام غزالي رح وې. چه په غور فکر کښې ذکر موجود دې. او دې سره دوه څیزونه زیات وي. یو د الله معرفت او دویم د الله سره محبت. او دې غور فکر ته صوفیان مراقبه وائي خوږ نبي وې. چه دا سې پټ ذکر چه فرښتې یې هم ناوري اویا درجې زیاتې لري. د دې قسم خلقو ده ښکاره اعمال چه حساب شي. او کرام الکاتبین اوائي. چه نور اعمال یې نشته. نو د ذکرِ خفي په باره کښې به خدائ اووائي. چه د ده دا سې عمل شته چه

تاسو ترے نه یئ خبر. دا ذکرِ خفی اویا درجے دَ ښکاره ذکو نه زیات دے. دغه دَ مطلب دے

میانِ عاشق و معشوق رمز لیست کرام الکاتبین را ہم خبر نیست

مطلب دے . دا ډیر خوش قسمت بندګان دی. ظاهری عبادات هم کوی. او ذکرِ خفی هم کوی. په دے شیطان ډیر تنګ وی. حضرت جنیدؒ یو ګل ارشیطان بربنډ اولید. نو ده ورته اووے چه تاته شرم نه درځی. دَ خلقو په مخکښ بربنډ ګرځے. ده ورته اووے چه داخه بنی آدم دی. بنی آدم خو دَ شونیزیه" دَ جماعت خلق دے. چه ځوبے یئ ته کړم . او ځیګرے ئے ئے کباب کړو. جنیدؒ چه دے جمات ته لاړو نو څه ګوری چه څه کسان په مراقبه کښ سر ښکته ناست دی. دوی ماته اووے چه ګوره په شیطان دهوکه نشے. دَ مسوحی په روایت کښ دا زیاتے دے. چه شیطان وے که دوی سړی دی. نو ما به ورسره داسے لوبے کولے. لکه وارہ چه دَ ینډوس سره کوی. ابوسعید خزارخپل خوب بیانوی. چه په ما شیطان حمله اوکړه. نو ما په لرګی وهه دَ ده هډو پروانه وه. غیبی اواز راغے چه دے دَزړه دَ رڼا نه یریږی.

حضرت سعد دَخوږ نبیؐ فرمان بیانوی. چه ښه ذکر ذکرِ خفی دے. او ښه رزق دَګذارے رزق دے. دے ذکرخفی ته ذکرِ خامل هم وائی. دَ ښکاره ذکر او پټ ذکو فیصله شیخ کوی. دَ چا دَ پاره یو ښه ګڼړی او دَ چا دَ پاره بل.

(۸) عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَهْلِ ابْنِ حُنَيْفٍ قَالَ نَزَلَتْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صلعم وَهُوَ فِيْ بَعْضِ اَبْيَاتِهٖ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ فَخَرَجَ يَلْتَمِسُهُمْ فَوَجَدَ قَوْمًا يَذْكُرُوْنَ فِيْهِمْ ثَائِرُ الرَّاْسِ جَافُّ الْجِلْدِ وَذُو الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَلَمَّا رَاٰهُمْ جَلَسَ مَعَهُمْ وَقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ جَعَلَ فِيْ اُمَّتِيْ مَنْ اَمَرَنِيْ اَنْ اَصْبِرَ نَفْسِيْ مَعَهُمْ. (ابن جریر)

دَ حنیف دَ ځوی سهل دَ ځوی عبدالرحمان روایت کوی. چه خوږ نبیؐ په یو کور کښ وو چه واصبر نفسک آیت پرے نازل شه. چه دَ هغے خلقو سره یئ ناسته اوکړه. چه سحر ماښام خدائ یادوی. خوږ نبیؐ دَ دوی په تلاش کښ ووت. نو یوه ډله ئے په ذکر کښ لګیا اولیده. چه وښتے ئے خواره دی او څرمنے ئے اوچے دی. او په یو ټک کښ دی. نو خوږ نبیؐ دَ دوی سره کینا ست او دَ خدائ ثنا ئے اوکړه. چه شکر دَے چه خدائ زما امت کښ داسے خلق پیدا کړه چه ما ته دَ دوی سره دَ ناستے حکم اوشه.

فائده: په يو روايت کښې دا راغلي چه دوى د جمات په آخيرى حصه کښې ناست وو. او دوى ته پيغمبر اووے. چه ځما مرګ او ژوند تا سو سره دے. په حديث کښې راځي چه سلمان رض او نورو صحابه رض په ذکر کښې مشغول وو. چه د دوى سره خوږ نبي راغے دوى چپ شو. خوږ نبي ﷺ اووے چه په تا سو رحمت وريدو نو ما اووے چه زه هم پکښې شريک شم. او ماته د دے قسم خلقو سره د ناستے حکم دے. د غه وجه ده چه صوفيان په دا سے حالت کښې د مريدانو سره کيني. چه شيخ د دوى د تربيه قاعدو په کتو صبر اوکړى. او د خپل نفس خير اولټوى. او په جمع ناسته کښې د همتونو زياتے راځي. ځکه د جمع موښځ او د عرفات جمع ضروري شوه. که يو ذاکر د غافلينو په مجلس کښې ګير شى نو د دے د ذکر ته زور ورکړى. دا هم لوئ فضيلت لري. چه د دوى د سپيره ثوب نه بچ شي. د دوى سره دا ذکر دا سے دے. لکه په جهاد کښې خلق او تختي او يو کس کلک مقابلے ته اودريږى. د ده ذکر په تيرے کښې پريوه اوکړځي. يا په اوچو اونو کښې شنه ونه. دا قسم بنده به په ژوندون کښې د جنت خپل ځائي اووينى خو چه ذکر کوى. که د دوى سره غافل وو نو دا قسم شرکت منع دے. په لغو او فضول مجلسونو کښې ناسته ولاړه منع ده. يو بزرګ خپله وينځه يو ځاے ګيټوله. هغې چه حلقه غافلان اوليده. نو د دغه ځائي نه لاړه. د دے سره ويره شوه. چه هسے نه په دوى عذاب راشي. او زه پکښې ګيره شم. (استغفر الله)

(١٩) عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم فِيْمَا يُذْكَرُ عَنْ رَبِّهٖ تَبَارَكَ وَتَعَالىٰ اُذْكُرْنِىْ بَعْدَ الْعَصْرِ وَبَعْدَ الْفَجْرِ سَاعَةً اَكْفِكَ فِيْمَا بَيْنَهُمَا۔ (احمد)

ابو هريره رض د خوږ نبي صلى الله عليه وسلم نه روايت کوى. چه خداى وائي چه ته ما د ماخيګر او سحر نه روستو ياد کړه زه به د دے د مينځ د وخت ستا ذمه وار شم. يو روايت دے چه ته ذکر کوه زه به ستا مطلب پوره کوم.

فائده: يو کورنى موږ د دنيا کارونو د پاره څومره خوارئ او محنتونه کوو. او کله اوشى او کله نه. او خداى وائي چه زه به دِ په خپله ټول کارونه

سم کړم. که ته سحر او ماښام ذکر کوے. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه سحر او ماښام د ذاکر یښو سره ناسته ماله د دے نه زیاته خوښه ده. چه څلور عرب غلامان آزاد کړم. حدیث دے چه د سحر مونځ جمع سره اوشی. او تر نمر ختو پورے خپل ځائ کینی او بیا دوه رکعته اوکړی. نو د ده د کامل حج او عمرے ثواب کیږی.

خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د دے قسم خلقو سره په دے وخت کښ ناسته د دنیا او د دنیا د ټولو څیزونو نه غوره ښودلے ده. ځکه صوفیان د سحر او ماښام وخت په وظائفو لګوی. تر دے چه امام مالکؒ د سحر د مانځه نه تر نمر ختو خبرے مکروهے ګنړی. در مختار هم داسے لیکی. حدیث دے چه د سحر د مانځه نه پس په خپل ځائ لا اله الا الله وحده لاشریک له تر آخره لس کرته او اووائی نو لس نیکئ اولیکلے شی. لس بدئ معاف شی او لس درجے په جنت کښ زیاتے شی. او ټول له ورځ به د شیطان د حملو نه بچ وی. په دے اوقاتو کښ د استغفرالله په دریے کرته ویلو د ده د سمندر د هومره ګناه معاف کیږی.

(۲۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صلعم یَقُوْلُ الدُّنْیَا مَلْعُوْنَةٌ وَّمَلْعُوْنٌ مَا فِیْهَا اِلَّا ذِکْرُ اللهِ وَمَا وَالَاہُ وَعَالِمًا وَّمُتَعَلِّمًا (ترمذی)

د ابوهریرهؓ نه روایت دے. چه د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه ما اوریدلی دی. دوی وے چه د دنیا او د دنیا ټول څیزونه د خدائ د رحمت نه لری دی. مګر د خدائ ذکر او هغه څیز چه دے ته نژدے وی او عالم او طالب علم

فائده:- ذکر ته نژدے د ذکر امداد کونکی څیزونه دی. لکه خوراک سکاک شه. او د غسے د ژوند نور ضروریات شو. او کیدے شی چه د دے نه مراد د خدائ نژدے والے وی. نو دا خو ټول عبادات دی. چه په دے د خدائ نژدے والے حاصلیږی. په دے دواړو صورتو نو کښ علم په دیکښ داخل دے. ځکه چه په علم بندهٔ ذکر ته نژدے کیږی. بے د علم نه د خدائ پیژندګلو نه شی کیدے. او علم په عبادتو نو کښ لوئ عبادت دے. علم او طالب علم بیلے ځکه ذکر کړه

چه علم ځان ته لویه دولت دے. حدیث دے. چه علم صرف د خدائ د پاره زده کول د خدائ د ویرے په حکم کښ دے. او د علم تلاش عبادت دے. او د علم یادول د تسبیح هسے دے. او په علم کښ تحقیق جهاد دے. او د دے لوسته خیرات دے. او دا لوګو لو ته د خدائ نزدے والے دے. علم د جنت د لارو نښے ښکاره کوی. د بنده نه یواځے والے لرے کوی. د سفر ملګرے دے. د خوشحالئ او د غم دلیل دے. د دښمن خلاف توره ده. د دوستانو د پاره د مرتبو او چتولو ذریعه ده. چه دوی، دوی ته دعوت ورکوی. دوی خلق د فرښتو دوستئ ته راغواړی. فرښتے د مینے وزرے په دوی وهی. د ذے لوندے هر څیز دوی ته دعا کوی. او د دوی د پاره بخنه غواړی. تردے چه مهیان، د ځنګل ښرمخان، ځاروی او ماران هم د دوی بخنه غواړی. داځکه چه علم د زړونو رنړا ده. د سترګو روښنائی ده. په علم د نیکانو سره نزدے والے راځی. په علم د دنیا او د آخرت مرتبے حاصلیږی. د علم مطالعه د روژو مرتبه لری. د علم یادول د تهجد و هسے دی. په دے حلال حرام معلومیږی. علم د عمل امام دے. نیکانو ته د علم انهام کیږی. او بدبختان د علم نه بے برخے وی. په دے حدیث څه قدرے بحث شته. خو د دے فضائلو ذکر په نورو روایاتو کښ شته. او د علم او طالب العلم کښ خاص ذکر دے. حافظ ابن قیم یوه اوږده رساله د "اَلْوَابِلُ الصَّیِّب" په نوم د ذکر په فضائلو جوړه کړیده. دے وائی چه په ذکر کښ تال فضائل دی.

(۱) ذکر شیطان دفع کوی. او د ده طاقت ماتوی. (۲) دا د خوشحالئ سبب دے. (۳) د زړه غم او فکر لرے کوی. (۴) مخ او زړه روښانه کوی. (۵) په زړه کښے خوشحالی پیدا کوی. (۶) وجود او زړه طاقتمند کوی. (۷) رزق راکاږی. (۸) بنده ته د رعب او خوبۍ والی جامه اغوندوی. (۹) د خدائ سره محبت پیدا کوی. چه هغه د اسلام روح او د دین مرکز دے. او په دے نیک بختی او خلاصے حاصلیږی ذکر د الله د محبت حاصلولو دروازه ده. (۱۰) په ذکر مراقبه او د احسان مرتبه حاصلیږی. چه هغه د خدائ په مخامخ لیدونه وائی. او هم دا مرتبه د صوفیانو آخری مقصد دے. (۱۱) د الله طرف ته په ده کرځیدل کیږی. او په هر څیز کښ

دے دخدائ پناه حاصلولے شی. او په هر مصیبت کښ دے دخدائ طرف ته ګرځی. (۱۲) د
خدائ نزدے والے پرے حاصلیږی. په غفلت کښی لرے والے وی. (۱۳) دخدائ دمعرفت
دروازه ده. (۱۴) دخدائ رعب او لوئی په زړه کښ پیدا کوی. او دے هر وخت ځان
دخدائ په حضور کښ وینی. (۱۵) په ذکر سره الله دده ذکر په ښتو کښ کوی.
داخومره لوئی فضیلت دے. چه دبنده ذکرخدائ کوی. (۱۶) زړه ژوندے
کوی. ابن تیمیه وے چه ذکر دزړه دپاره داسے دے. لکه اوبه دمهی دپاره. (۱۷)
دا د زړه او د روح خوراک دے. (۱۸) د زړه نه زنګ لرے کوی. کوم چه په غفلت او په
خواهشاتو پیدا کیږی. (۱۹) خطائی لرے کوی. (۲۰) په ذکر دخدائ نه لرے والے لرے
کیږی. (۲۱) بنده چه ذکر کوی نو دا ذکرونه په عرش کښ چاپیره کیږی. (۲۲) چه
په خوشحالئ کښ بنده ذکر کوی. نو په مصیبت کښ خدائ دده ذکر کوی. (۲۳)
دا دخدائ د عذاب نه دخلاصی ذریعه ده. (۲۴) سکینه او د رحمت ملائکے دوی په
ګیره کښ داخلی. (۲۵) د ذاکر ژبه د غیبت، چغلئ، دروغو او فضولو خبرو نه بچ
دی. (۲۶) د ذکر مجلسونه د فرښتو مجلسونه دی. او د غفلت مجلسونه د شیطان
مجلسونه دی. او هر څوک دخپل مناسب مجلس کښ کینی. (۲۷) ذاکر په خپله هم
نیک وی. او مرسری یے هم نیکان وی. او غافل د دے خلاف وی. (۲۸) ذاکر به
قیامت کښ افسوس نه کوی. لکه غافل چه به کوی. (۲۹) ذاکر که ژړا هم اوکړی.
نو د قیامت د ګرمئ نه به د عرش په سوری کښ وی. (۳۰) ذاکر ته د دعا کونکو نه
زیاته ورکیږے شی. (۳۱) ذکر چه صرف په ژبه کیږی اسان دے. خو سره د دے
د ټولو نه زیات ثواب لری. (۳۲) د الله ذکر د جنت ونے دی. (۳۳) خومره
انعامونه چه په ذکر ورکیدے شی. دا په نورو عبادتونو نه شی ورکیدے. ځکه
د لا اله الا الله وحده تر آخره ۱۰۰ ځل که ئے وینا د لسو غلامانو د آزادولو هومره
ثواب لری. او ۱۰۰ ځل نیکئ به ورکړے شی. او ۱۰۰ ځل بدئ به ورته معاف شی. او تر
ماښام به د شیطان نه بچ وی. او د ده نه هیڅوک غوره نشته. خو که د ده نه یے
زیات عمل کړے وی. (۳۴) په ذکر د بنده نه خپل نفس او خپل د خبر کارونه
نه هیریږی. او خپله حقیقی ګټه ورته معلومه وی. د دے د نفس او د خپلو مصالحو

دَ باغ په رنګ ساتنه کوی. او په غفلت کښې دا هر څه هیر شی. او دے هلاک شی. دے دَ ذکر دا سې شرق لری. لکه څنګه چه دَ او بو سره لری. او اوبه دے دَ خوراک سره. او په سپږدۍ کښې جامے او مکان سره. څکه چه دَ دے څیزونو په نه موندو وجود هلاکیږی. نو دَ وجود هلاکت دَ زړه دَ هلاکت نه ډیر کم دے. غافل زړه هلاکوی او ذاکر دَ ذکر په غذا دے ژوندے ساتی. (۳۵) ذکر بنده په بستره په بازار. په دوغه، په ناجوړتیا په نعمتونو او خوندونو کښې ترقی کوی. دا دَ هر وخت ترقی صرف په ذکر حاصلیږی. دا ذاکر او دهٔ دَ غافل ویخ نه زیاته درجه لری. (۳۶) دَ ذکر رنړا دَ بنده سره په دنیا کښې، په قبر کښې، په آخرت کښې په پل صراط کښې څکښې روانه وی. په قرآن شریف کښې ذکر ته ژوند او رنړا دَپلے شوی ده. او غفلت تیاره ده. چه بنده یکښې په ټکرو سروی. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے رنړا ډیره غوښتنه کړیده. خوږ نبی علیه السلام په خپلو ادو کو، پلو، غوږو څرمنے، غوږ، ونو او سترګو کښې نښکته بره، ښی او کیڼ طرف ته، څکښې، روستو رنړا غوښتے ده. او دَ ټول وجود رونړا نوالے یې غوښتے دے. دغه رنړا ګانے به دَ دوی په څخو نو خورے وی. (۳۷) ذکر دَ ټولو صوفیا نو په طریقو کښې اصولی خبره ده. په دے دروازه بنده خدای ته رسی. او دَ خدای سره هر څه موجود دی. (۳۸) دَ هر بنده په زړه کښې یوه حصه ده. چه هغه په دَ الله دَ ذکر نه ډکیږی او چه دا حصه ډکه شی. نو دے بے ماله مالدار شی. او بے ټبره دَ خلقو سخه غږ تمتن شی. او بے باچاهۍ باچا شی. او کوم بنده چه غافله وی. نو دے سره دَ مال او دولت نه او ټبر والۍ او حکومت نه ذلیل وی. (۳۹) ذکر فکر ورته او غمونه لرے کوی. او ذکر ګناهونه او خطابۍ خوره وی. او دَ شیطان لښکر زغلوی او بے آخرت نږدے کوی. او نه دے دنیا لرے کوی. (۴۰) ذکر بنده دَ خوب نه وایا سوی. او دَ دَ زړه چه او ده جی. نو خپلے ټولے ګټے ته ګوی. (۴۱) دَ ذکر په وُنه دَ معرفت میوے لری. او په ډیر ذکر دَ دے جرړے کلکیږی. او چه جرړے کلکے وی. نو میوے ډیریږی. (۴۲) په ذکر دَ خدای معیت حاصلیږی. إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا. خدای دَ متقیا نو ذاکرینو سره دی. او معیت هم

چه أَنَا مَعَ عَبْدِي إِذَا ذَكَرَنِي "زه د ذکر په وخت کښې د خپل بنده سره یم". خدای
وائي چه زه د ذاکر دوست یم. د خدای سره معیت نه په لیکلو او نه په ژبه بیانیدے
شي. د دے په خوند به هغه څوک پوهیږي چه چاته دا نصیب وي. اَللّٰهُمَّ
ارْزُقْنَا مِنْهُ شَيْئًا يَا رَزَّاق آمِيْن. (۴۳) ذکر د غلامانو د آزادولو خیراتونو
د کولو د خدای په لار کښې د جهاد او تورو لو برابر دے. (۴۴) ذکر د شکر وېخ دے
چه څوک ذکر نه کوي نو هغه شکر هم نه کوي. موسیٰ علیه السلام یو ځل ارخدای
ته عرض اوکړو چه تا په ما پیر احسانات کړیدي. تو ماته داسے طریقه او ښایه
چه زه ستا پیر شکر ادا کړم. تو خدای پاک ورته اووے چه څومره ذکر دِ اوکړو
نو دا دومره شکر دے. او ده ته یې اووے چه شکر هم په دے طریقه ادا کیږي
چه هر وخت دِ ژبه په ذکر لګیا وي. (۴۵) په پرهیزګارانو کښې زیات عزتمند
هر وخت ذکر کونکے دے. ځکه چه د تقوی آخر جنت دے. او د ذکر آخر د
الله معیت دے. (۴۶) په زړه کښې یو قسم سختي ده. چه هغه بے د ذکر نه په
بل څه نه نرمیږي. (۴۷) ذکر د زړه د ناجوړتیا لانو دارو دي. (۴۸) ذکر د خدای
سره د دوستۍ وېخ دے. او غفلت یې د دښمنۍ وېخ دے. (۴۹) د ذکر نه زیات
د خدای د رحمتونو رابنکونکے او د الله د عذاب لرے کونکے نشته. (۵۰) په ذاکر د
الله رحمت دے او د ده د پاره د فرښتو دعا ده. (۵۱) څوک چه په دنیا کښې په جنت
کښې اوسیده غواړي نو دے دِ د ذکر مجلسونو کښې کیني. (۵۲) د ذکر مجلسونه د
فرښتو مجلسونه دي. (۵۳) په ذاکر خدای د فرښتو په مخکښې فخر کوي.
(۵۴) په ذکر همیشګي کونکے په جنت ته په خندا ختل اخلي. (۵۵) ټول عملونه
د الله د ذکر د پاره دي. (۵۶) په عملونو کښې هغه عمل غوره دے. چه په
هغې کښې ذکر پیر شوے وي. داکه روژه دي که حج دي که جهاد وي. (۵۷) ذکر
د هر نفلي عبادت په ځای او دریږي که نفلي حج او عمره جهاد شو. (۵۸) په
ذکر د بنده زړه کښې د هر عبادت سره محبت پیدا کیږي. او عبادت ورله خوند
ورکوي. او عبادت پرے دروند نه وي. (۵۹) په ذکر هر رنګ سفر او
مصیبت سپک ګرځي. او سختي پرے لرے کیږي. (۶۰) په ذکر د زړه نه ویره

لرے کیږی. او تسلی پرے حاصلیږی. (۶۱) په ذکر بنده ته سخت کار ورته داسے
اسان شی. چه غافلانو ته دا ګران وی. ځکه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خپلے
لور فاطمے بی بی ته د میچنے د مشقت لرے کیدو د پاره سبحان الله، الحمد لله دری
دیرش ځل اره او الله اکبر څلور دیرش ځل اره ښودلے وو. او دوی ته یې او وئیلے چه
دا د دے د پاره د خادم نه غوره دے. (۶۲) چه د عملونو د ثوابونو تقسیم شروع
شی. نو ذکرنه کونکی به افسوس کوی چه ثواب یې ډیر دے او عمل یې لږ دے.
ذاکر ته مفرد هم وائی چه مخکښ مخکښ به ځی. او په ذکر به ځان وژنی ذکر
به د دوی بوجهه سپکه وی. (۶۴) خدائی د ذاکرینو په خبله تصدیق کوی.
چه بنده لا إله إلا الله اووائی نو خدائی پاک اووائی دا رښتیا اووے. چه
ما د هغه پرته لوئی یم. (۶۵) په ذکر په جنت کښ ابادے کیږی. چه ذکر بند شی
نو ابادے هم بند شی. د فرښتو نه چه تپوس اوشی. چه دا ولے؟ نو دوی وائی.
چه د آبادئ سامان لا نه دے راغلے. حدیث دے چه په سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ
سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ باندے په جنت کښ یو ګنبد جوړیږی. (۶۶) په ګناه چه
بنده د دوزخ قابل شی نو ذکر د دے د پاره مانع اوګرځی. او چه څومره ډیر
ذکر وی. دومره سخت یې دیوال وی. (۶۷) د ذاکر د پاره فرښتے بخښنه غواړی
چه سبحان الله یا الحمد لله اووائی. نو دوی ورله بخښنه اوغواړی. چه خدایه
دے اوبخښے. (۶۸) هغه غر او میدان چه په ده ذکر اوشی. نو دے په نورو مقامونو
فخر کوی. (۶۸) ذکر د منافقئ نه د بچ کیدو دلیل دے. ځکه چه د منافقانو
په باره کښ فرمان دے چه لَا يَذْكُرُونَ اللهَ إِلَّا قَلِيلًا. (۶۹) په ذکر کښ هغه
خوند دے. چه هغه په بل عبادت کښ نشته. (۷۰) د ذاکر په مخ به په دنیا
کښ رڼا او په آخرت کښ رڼا وی. (۷۱) کوم کوم ځائ چه بنده ذکر کوی دغه
ځائ به د ده د پاره ګواهی کوی. د يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا هم دا مطلب
دے. چه پا په زمکه هر څه نیک بد کړی وی دا ځمکه به پرے ګواهی کوی. (۷۲)
ژبه او زړه چه ذکر کوی نو تبه فائدے خبرو او فکرونو نه به خلاص وی.
کوم بنده په زړه کښ د الله محبت نه کوی. نو د دنیا محبت به کوی. (۷۳) د بنده

نه چاپیږه ، د شیطانانو فوځونه د تکلیف رسولو د پاره پراته دي . د دوي د لرے کولو د پاره د ذکرنه بغیر بله هیڅ وسیله نشته . په احادیثو کښ ډیرے داسے دعاګانے دي . چه د دے په وجه شیطان بنده ته نزدے نه شي راتلے . اوچه په اول او د ه کښ وکښ یے او واے نو تول شپه د شیطان نه بچ وي . په دے ابن قیم او ما ډیرے دعاګانے په شپږ و غیرو کښ لیکلي دي . د توفیق خاوند د پاره دا لیکل هم ډیر دي . او چه خدائے توفیق ور نه کړي نو د هغوي د پاره ډیر هم هیڅ دي . وَمَا تَوْفِیْقِیْ اِلَّا بِاللهِ .

# باب دویم

## کلمه طیّبه

کلمه طیّبه چه کلمه د توحید ورته هم واي . دا په قران حدیث کښ دومره ډیره راغلے ده . چه بل څه دومره نه دي ذکرشوي . ځکه چه د ټولو پیغمبرانو علیهم السلام اصلي مقصد د خدائ یو والے ثابتول دو . د دے کلمے مختلف نومونه دي . کلمه طیبه . قول ثابت . کلمه تقوی . مَقَالِیْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ . عُرْوَةُ الْوُثْقٰی . دَعْوَةُ الْحَقِّ . ثَمَنُ الْجَنَّةِ د دے مختلف عنوانات دي . ځکه ما دا باب په درے فصلونو تقسیم کړو . په اول فصل کښ هغه آیتونه دي . چه کلمه طیبه ئے مراد ده او دا کلمه ذکرنه ده . او دا خبره د اصحابو په تفسیر او د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم په بیان ثابتوي . دویم فصل کښ دا کلمه ټوله یا لږه بدله ذکر ده . په آیتونو کښ دلته ترجمه نه ده ذکرشوے . دریم فصل کښ هغه احادیث دي . په کومو کښ چه د دے کلمے ترغیب ورکړے شوید دے .

وَمَا تَوْفِیْقِیْ اِلَّا بِاللهِ ط

# فصل اوّل

چه په دے اٰیتونو کښې دَ کلمے لفظ نشته - او مراد ئے کلمه طیبه ده ۔

(۱) اَلَمْ تَرَ کَیْفَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا کَلِمَةً طَیِّبَةً کَشَجَرَةٍ طَیِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ وَّ فَرْعُهَا فِی السَّمَآءِ تُؤْتِیْٓ اُکُلَهَا کُلَّ حِیْنٍ بِاِذْنِ رَبِّهَا (ابراهیم)

آیا تا ته معلومه نه ده چه خدائ څه مثال بیان کړے دے دَ کلمے طیبے چه دا پشان دَ ونے ده چه دَ هغے ویخ په زمکه کښې ځ وی او ښاخونه ئے تر اسمانه وی ۔

فائده :- ابن عباسؓ دَ کلمے طیبے نه مراد کلمه شهادة اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اخلی ۔ دَ دے ویخ دَ مؤمن په زړه کښې دے ۔ او ښاخونه ئے عمل دے چه اسمان ته ځی ۔ او دَ هر وخت میوے ورکولو معنیٰ دا ده ۔ چه دَ خدائ یاد کوی ۔ چا خوږ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم ته اووے ۔ چه مالداران ډیر ثوابونه اوګټل چه خیراتونه کوی ۔ خوږ نبی علیه السلام ورته اووے ۔ چه که څوک مال سامان شکته پورته کوی نو دے به اسمان ته او خیژی څه ؟ زه درته داسے کلمه ښایم چه ویخ ئے په زمکه کښې او ښاخونه ئے په اسمان کښې دی ۔ هغه داسے چه دَ هر مانځه نه روستو لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ سُبْحَانَ اللّٰهِ - والحمد للّٰه لس لس کرته اوایه ۔ دا هغه ونه ده ۔

(۲) مَنْ کَانَ یُرِیْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِیْعًا اِلَیْهِ یَصْعَدُ الْکَلِمُ الطَّیِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ یَرْفَعُهٗ (فاطر رکوع ۲)

څوک چه عزت حاصلول غواړی نو دَ اللّٰه نه ئے حاصل کړی دَ هغه نه کلمے بره خیژی او نیک عمل ئے پورته کوی ۔

فائده :- ډیر مفسرین دَ دے کلمونه مراد لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اخلی ۔ او بعض نورے کلمات تسبیح مراد اخلی ۔

(۳) وَ تَمَّتْ کَلِمَةُ رَبِّکَ صِدْقًا وَّعَدْلًا (انعام - رکوع ۱۴)

او ستا دَ رب کلمه دَ رښتیاؤ او انصاف په اعتبار سره پوره ده ۔

فائده :- انسؓ وائی چه خوږ نبی صلی اللّٰه علیه وسلم په دَ کلمے دَ رب نه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مراد اخستے ده ۔ او بعض نورے مراد کلام اللّٰه شریف اخلی ۔

(۴) یُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ

خدائ مومنان په پخه خبره په دنیا او آخرت

الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ دواړو کښ کلک ساتی.

(ابراهیم- رکوع ۱۴)

فائده:- براءؓ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ﷺ چه په قبر کښ به مؤمن د لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ شاهدی ورکوی. دَ پخے خبرے نه مراد دا کلمه ده. عائشه بی بی هم دا دَ قبر سوال جواب منی. ابن عباسؓ وے چه هر کله مسلمان مړی. نو فرښتے ده ته حاضرے شی. ده ته سلام اوکړی. دَ جنت زیرے ورکړی. او فرښتے ورسره جنازے ته روانے شی. او دَ ده په جنازه کښ شریکے شی. او چه خښ شی نو په لحد کښ یے کینوی. او دا پوښتنه ترے اوکړی چه ستا شاهدی څه ده نو دے ورته اَشْهَدُ کلمه تر آخره اووائی. په دے آیت کښ هم دا مراد ده. ابو قتادهؓ وے. چه دَ دنیا پخه خبره لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ده او په آخرت کښ دَ قبر سوال جواب دے حضرت طاؤسؒ هم داسے وائی.

(۵) لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَيْءٍ إِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ إِلَى الْمَاءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ. (رعد- رکوع ۲)

رښتینے بلنه دَ خدائی سره خاصه ده. او بل چاته بلنه خو داسے ده. لکه او بوته ولیل چه هله خولے ته راشی. او لاس یے ورته اوګدَ کړی دی. او دا او به په اوبو دَ ده خلے ته نه راځی.

فائده:- حضرت علیؓ وے چه دَ دعوت الحق نه مراد لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ دے. دغسے ابن عباسؓ هم وے.

(۶) قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلٰى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَنْ لَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ (آل عمران- رکوع ۷)

اے خوږه نبی! ته دے اهل کتابو ته اووایه چه داسے کلمے ته راشی چه زموږه او ستاسو برابره ده چه هغه دَ یو خدائی عبادت دے

فائده:- دلته دَ کلمة نه مراد توحید او کلمه طیبه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ده.

(۷) كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ.

(آل عمران- رکوع ۱۲)

اے امت محمدیؐ تاسو دَ ټولو مذاهبو دَ خلقو نه غوره یئ. تاسو دَ خلقو دپاره یئ. دوی ته په دَ نیکئ حکم کوئ او دَ بدئ نه یے منع کوئ

فائده:- ابن عباسؓ دَ تَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ مطلب لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ کواهی وائی او دا دَ

هر څیز نه غوره څیز دے۔ او لویه مرتبه لری۔

(۸) وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ ۔ (هود۔ رکوع ۱۰)

او اے محمد ﷺ! مونځ او دروه د ورځے په دواړو اړخونو کښ او د شپے په څه حصه کښ بے شکه نیکی د عملونو بدی ورانوی۔ دا یو نصیحت دے د نصیحت منونکو دپاره۔

فائده:۔ حضرت ابوذر رضی الله عنه ته خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نصیحت کوؤ۔ چه کوم کله څه بدی د اوکړه۔ نو زر ورپسے نیکی کوه۔ چه د دے بدل اوګرځی۔ او هغه لوشی۔ دے وائی ما عرض اوکړو۔ چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه وظیفه هم نیکو کښ شمیرلے شی۔ دوی اوفرمائیل۔ چه دا خو ډیره غوره نیکی ده۔ د عیسے انس رضی الله عنه وے چه خوږ نبی علیه السلام وے چه هر څوک چه په شپه او ورځ کښ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووائی نو د ده د عملونه نه بدی لرے کیږی۔

(۹) اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ وَاِيْتَآئِ ذِى الْقُرْبٰى وَيَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ۔ (نحل۔ رکوع ۱۳)

بے شکه الله د انصاف او د ښه کولو او خپلوانو ته د ورکړو حکم کوی۔ او د بے حیائی او د بدو خبرو نه منع کوی۔ خدائ تاسو ته نصیحت کوی شاید چه تاسو نصیحت حاصل کړی۔

فائده:۔ ابن عباس رضی الله عنه د عدل تعریف په لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه سره کوی۔ او د احسان نه مراد فرائض اخلی۔

(۱۰) يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۔ (احزاب رکوع ۹)

اے ایمان والو د خدائ نه یریږئ۔ او وایئ وینا ښه او پخه۔

فائده:۔ عبد الله ابن عباس رضی الله عنه او عکرمه رحمه الله دواړه قَوْلًا سَدِيْدًا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ته وائی۔ چه دا وایئ۔ یو حدیث دے۔ چه د ټولو نه ډیر پاخه عملونه دا دی چه په هر حالت کښ په غم په خوشحالئ، تنګئ او فراخئ کښ د الله ذکر کول۔ د ځان په باره کښ هم انصاف کول۔ د خپلو رونړو سره مالی امداد کول۔

(۱۱) فَبَشِّرْ عِبَادِ الَّذِيْنَ يَسْتَمِعُوْنَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُوْنَ اَحْسَنَهٗ اُولٰٓئِكَ

پس ته دا سے بندګانو ته زیرے ورکړه۔ چه دا کلام پاک ښه په پوره توجه اوری

الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللّٰهُ وَأُولٰئِكَ هُمْ أُولُوا الْأَلْبَابِ ۝ (زمر۔ رکوع ۲)

بیا دوی د غوره خبرو تابعداری کوی۔ دوی ته الله هدایت اوکړو۔ دوی عقلمند دی۔

فائدہ:۔ ابن عمرؓ وائی چه سعدؓ بن زید، ابوذرؓ غفاری او سلمان فارسیؓ به د جاهلیت په زمانه کښ هم لا اله الا الله وے او د احسن القول نه هم دا کلمه مراده۔ دا آیتونه د دے دریوارو په باره کښ نازل شوی دی۔

(۱۲) وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ أُولٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ (زمر)

او هغه خلق چه الله پاک رسول طرف ته په رښتیا خبره راتله اوکړی۔ او پخپله هم د دے تصدیق کوی۔ نو دا خلق پرهیزګار دی۔

فائدہ:۔ د خدائی د طرف نه راوړونکی خو رسولان دی۔ او د رسول وینا رسونکی عالمان دی۔ ابن عباسؓ "د صدق" نه مراد لا اله الا الله اخلی۔ او د اَلَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ نه مفسرین مراد خو نبی صلی الله علیه وسلم اخلی۔ او وَصَدَّقَ بِهِ نه مراد مومنان دی۔

(۱۳) إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا (حم سجدہ۔ رکوع ۴)

بے شکه هغه خلق چه الله رب مني او بیا په دے کلک اولاړ وی نو په دوی به د مرګ په وخت کښ ملائکے راکوزیږی۔ او دوی ته به وائی چه مه یریږئ او مه غم کوئ۔

فائدہ:۔ ابن عباسؓ د ثُمَّ اسْتَقَامُوا معنی داکوی چه لا اله الا الله باندے ترمرګه کلک اقرار کوی۔ او په شرک هیڅ کله ګرفتار نه شی۔

(۱۴) وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَا إِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ ۝ (حم سجدہ رکوع )

او په خبرو کښ د هغه نه ښه خبره کله کیدے شی چه د خدائی طرف ته بلنه کوئ او پخپله نیک عمل کوئ۔ او وائی چه زه مسلمان یم۔

فائدہ:۔ حضرت حسن د إِلَى اللّٰهِ نه د بانګ ویونکی دا لا اله الا الله وئیل مراد اخلی۔ حافظ ابن هبیره وے۔ چه د بانګ نه اوزګار شے نو لا اله الا الله الله اکبر وانا من المسلمین او وایه۔

(۱۵) هَلْ جَزَاءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا ... دلے د احسان بدله بے د احسان سنه

الْإِحْسَانُ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۔

بله کیدے شي؟ پس په کومو نعمتونو د رب باندے تاسو دواړه دروغژن ولے کوئ۔

فائده :- ابن عباسؓ وائي ۔ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے ۔ چه په چا ماد لا اله الا الله انعام اوشو نو د ده بدله به د جنت نه بله کله کیدے شي۔ عکرمهؒ او حضرت حسنؓ هم دغسے تفسیر کوی۔

(۱۶) فَأَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا ۔ (فتح ۳)

پس خدائی خپل خاص رحمت په خپل رسول او په مؤمنانو نازل کړو او دوی ئے د تقوی په کلمے کلک کړل ۔ او دوی د دے کلمے حقدار او اهل وو۔

فائده :- د تقوی د کلمے نه مراد په اکثرو روایاتو کښ کلمه طیبه ده ۔ ابو هریرهؓ هم د خوږ نبی علیه السلام نه دا نقل کوی۔ عطاء خراسانیؒ پوره کلمه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ نقل کوی ۔ او حضرت علیؓ نه لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ هم نقل دے ۔ بعض بزرگان یواځے لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وائي ۔

(۱۷) قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ

کته اوکړه هغه چا چه پاکی ئے اوکړه۔

فائده :- جابرؓ د خوږ نبیؐ نه نقل کوی ۔ چه د تزکی نه مراد لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ گواهی ده ۔ او ایمان پرې خوړه دی ۔ عکرمهؒ وائي چه د دینه مراد لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ویل دی ۔ دغسے ابن عباسؓ هم وائي ۔

(۱۸) فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَاتَّقَىٰ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَىٰ (لیل ع ۱)

پس څوک چه خدائی د کره کوی ۔ او د خدائی نه یره کوی ۔ او د دینے خبرے تصدیق ئے اوکړو نو مونږ دغه د اسانئ ځائی اسان کړو۔

فائده :- د اسانئ ځائی نه مراد جنت دے ۔ چه هغه هر قسم آرام دے ۔ مطلب دا دے چه مونږ به د جنت د تلو عملونه آسان کړو ۔ وائی چه دا آیت د ابو بکرؓ په باره کښ نازل شوے دے ۔ او د ښه خبرے تصدیق نه مراد د لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ تصدیق دی ۔ د امام اعظمؒ نه د ابوالزبیر په روایت او هغه د جابرؓ نه نقل کوی ۔ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم صَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ اوویے ۔ او دوی اوویے چه د دے نه مراد د لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ تصدیق دے۔

(۱۹) مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا۔ (انعام ع۲۰)

کوم کس چه نیک کار اوکړی۔ نو دهٔ ته به (لږ نه لږ) لس برخے ثواب ورکړے شی۔

فائده:۔ حدیث دے چه دا آیت نازل شه۔ نو چا عرض اوکړو چه خوږ ه نبی صلی الله علیه وسلم! دا لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ هم حسنه نیکی ده که نه؟ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اووے چه دا خو په ټولو نیکو کښ لویه نیکی ده۔ ابو هریرهؓ اووے چه دا لس چنده ثواب د عوامو پاره دے۔ د مهاجرینو د پاره خو به اووه سوه چنده ثواب ورکیدے شی۔

(۲۰) حٰمٓ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيْدِ الْعِقَابِ ذِی الطَّوْلِ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ۔

دا قرآن د الله د طرف نه نازل شوے دے چه زبردست د هر څیز علم لرونکے د ګناه بخونکے د توبے قبلونکے سخت سزا ورکونکے دے۔ بل څوک بغیر له ده نه د عبادت قابل نشته۔ د ده طرف ته ګرځیدل دی

فائده:۔ عبد اللهؓ بن عمرؓ وائی چه خدائ د لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویونکی بخښونکے دے۔ او د دوی توبه قبلونکے دے۔ او چه لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ نه وائی نو دے ورته سخت عذاب ورکونکے دے۔ ذِی الطَّوْلِ غنی دے۔ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ د خدائ ته د دے د پاره ګرځیدل دی۔ چه لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ویونکی جنت ته داخل کړی۔ او نه ویونکی دوزخ ته داخل کړی۔

(۲۱) فَمَنْ يَّكْفُرْ بِالطَّاغُوْتِ وَيُؤْمِنْ بِاللهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى لَا انْفِصَامَ لَهَا۔ (بقره ع۳۴)

بیا څوک چه د شیطان نه انکار کوی۔ او په الله پوخ یقین لری۔ نو ده کلک حلقه اونیوه چه هیڅکله به نه جدا کیږی۔

فائده:۔ ابن عباسؓ د عُرْوَةُ الْوُثْقٰى نه مراد لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اخلی۔ د سفیانؓ نه هم نقل دے۔ چه د عُرْوَةُ الْوُثْقٰى نه مراد د اخلاص کلمه ده۔

د غسے نورو ډیرو آیتونو کښ د کلمے طیبے دغه قسم مضمونه راغلی دی۔ دا مختصر ذکر کافی دے۔

## دویم فصل

په دے فصل کښ هغه آیتونه ذکر دی۔ چه په کوم کښ پوره کلمه طیبه یا جزئه مختصره کلمه او جزئه د کلمے طیبے معنیٰ په نورو الفاظو کښ ذکر ده۔ لکه مَا مِنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ۔

دا د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه معنیٰ لوی. یا لَا نَعْبُدُ اِلَّا اِیَّاهُ موږ ه بے له دة نه د بل چا عبادت نه کوو. یا اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ. چه معبود خو ایکی یو دے. او حقه خبره خو داده. چه ټول قران د کلمے طیبے په بیان کښ دے. ځکه چه دین خو ټول تپال د توحید نوم دے. او د دے کلمے د پاره په مختلفو زمانو کښ مختلف پیغمبران رالیږلی شوی دی. او توحید د ټولو مذهبونو مشترک مذهب دے. زه د آیتونو معنا ګانے لیکم چه کتو نکو ته اسانتیا وی.

(۱) او ستاسو خدائی خو یو دے. د دة نه سیوا بل خدائی نشته. دے رحمان او رحیم دے. (بقره ۱۹) (۲) الله ایکی یو دے. ژوندے دے په یو حال دے. (بقره ۴ ع ۳۴)

(۳) خدائی، ملائیکے او د علم خاوند د خدائی په یو والی ګواهی کوی. (آلِ عمران ۲)

(۴) بل معبود نشته. دے غالب او د حکمت خاوند دے. (آل عمران ۲)

(۵) راشئ هغے کلمے ته چه زموږ په منځ کښ برابره ده. چه موږ به د یو الله عبادت کوو. (آل عمران ۷) (۶) بے د الله نه بل معبود نشته. ضرور به تاسو د قیامت ورځے ته جمع کړی. (نساء ۱۱)

(۷) نشته بل خدائی بے د یو الله نه. (مائده ۱۰)

(۸) ته ورته او وایه. چه الله یو دے. (انعام ۲)

(۹) نشته بل څوک بے د الله نه چه تاسو راولی. (انعام ۵ ع)

(۱۰) دا ستاسو الله دے. نشته معبود برحق بے له دة نه. (انعام ۱۳)

د دغه قسم ډیر آیتونه دی. چه په دیکښ کلمه طیبه یاد دے مضمون ذکر دے. د توحید په باره کښ شغل په دین کښ پوخ والے پیدا کوی. ځکه دا توحید په قرآن کښ په مختلفو طریقو بیان شوید ے. چه دا کلمه د زړه د ننه دننه ور داخله شی. او بیا د غلطه کلک شی. او په زړه کښ بے د خدائی نه د بل چا د پاره ځائی پاتے نه شی.

# دریم فصل

په دے فصل کښې به هغه احادیث لیکم چه په هغې کښې د کلمے فضائل ذکر دی۔

(۱) عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صلعم قَالَ اَفْضَلُ الذِّکرِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَفْضَلُ الدُّعَاءِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ (مشکوٰة) جابرؓ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه غوره یه ذکرو نو کښې د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ذکر دے۔ او غوره یه دعاګانو کښې د الحمد لله دعا ده۔

فائده۔ توحید چه د دین مقصدی نکته ده۔ نو دا به یئ ولے غوره ذکر نه وی۔ او څوک چه د چا نه څه غواړی نو اول د هغه ښه ثنا صفت کوی۔ ځکه ذکو یاد دعا شروع ده۔ ځکه ابن عباسؓ وے چه څوک لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او وائی۔ نو الحمد لله وراله هم وئیل پکار دی۔ لکه چه د فَادْعُوْهُ مُخْلِصِیْنَ لَهُ الدِّیْنَ نه روستو اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ دا غلیدے۔ ملا علی قاری وائی چه د دین میچن د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ نه چاپیره ګرځی۔ صوفیان د کلمے ذکر د خو دلو اذکارو نه غوره منی۔ او د دے ډیر ډیر ذکر وینا کوی۔ په دیکښې ډیرے فائدے دوی نه په تجربه معلومے شوی دی۔

وائی چه د سید علی میمون سره شیخ علوان حموانی چه ډیر لوئی مفتی او مدرس وو۔ راغے۔ سید صاحب ده ته خاصه توجه اوکړه۔ او ده ته ئیئ اووے چه دا درسونه او فتوے پریږده۔ او ټول وخت په ذکر کښې اولګوه۔ خلقو لکه چه د دوی عادت دے دا ته بد رد وئیل شروع کړه۔ چه ګوره څومره ښے خیرے یئ په ذکر به ده پریښودے دا څه ښک سبب دے۔ بیا سید ته معلومه شوه۔ چه دے د قرآن تلاوت کوی۔ سید صاحب دے د دے نه هم منع کړو۔ په سید صاحب دوی په دے وجه د زنا یقی او بد دبنی الزام هو لګولو۔ یو څو ورځے پس په شیخ صاحب د ذکر اثر اوشه۔ او زړه یئ په ذکر کښې رنګ شه۔ نو بیا ورته سید او وے۔ چه او س قرآن لوله۔ دا چه قرآن دا واخسته۔ نو ډیر معارف او باریکے خبرے پرے ښکاره شوے۔ سید صاحب شیخ صاحب ته او وے۔ چه ما د دے غرض د پاره ته د تلاوت نه منع کړے وے۔ چه زړه د په ذکر خاص رنګ واخلی۔

کلمه د ایمان جرړے په زړه کښې ټخوی۔ د دنیا دا وجود په کلمه بنا دے۔

حدیث دے. چه قیامت به تر هغے نه قائمیږی. تر څو چه په زمکه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وئیلے شی.

(۲) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِنِ الْخُدْرِیِّ عَنِ النَّبِیِّ
صلعم. اَنَّهٗ قَالَ قَالَ مُوْسٰیؑ یَا رَبِّ عَلِّمْنِیْ
شَیْئًا اَذْکُرُکَ بِهٖ وَاَدْعُوْکَ بِهٖ قَالَ
قُلْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ یَا رَبِّ
کُلُّ عِبَادِکَ یَقُوْلُ هٰذَا قَالَ قُلْ
لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ اِنَّمَا اُرِیْدُ شَیْئًا
تَخُصُّنِیْ بِهٖ قَالَ یَا مُوْسٰی لَوْ اَنَّ السَّمٰوٰتِ
السَّبْعَ وَالْاَرَضِیْنَ السَّبْعَ فِیْ کِفَّةٍ
وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِیْ کِفَّةٍ مَالَتْ
بِهِمْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ. (نسائی)

ابو سعید خدریؓ دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
نه روایت کوی. چه روی دے. چه موسیٰ علیه
السلام دَ خدائ نه دَ داسے کلمے سوال اوکړو. چه دَ
هغے ذکر کوی. او په دے دعا کوی. نو خدائ ورته
اووے چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وایه. موسیٰؑ عرض اوکړو
چه دا خو ستا ټول بندیان وائی. خدائ پاک
بیا ورته هم دا وایه. ده وے ما ته خاصه
کلمه او ښایه. خدائ پاک اووے چه که اووه
واړه اسمانونه او زمکے په یوه غاړه کښ وی
او کلمه په بله کښ نو دَ کلمے غاړه به په تله کښ درنه وی.

فائده:- دَ خدائ دا قانون دے. چه څومره یو څیز ته ډیر ضرورت وی دومره هغه عام وی لکه سا، اوبه، هوا، څومره ضروری او عام څیزونه دی. او هر ځائ په لاس راځی. دومره ده چه دَ خدائ سره قدر دَ اخلاص دے. په اخلاص یو عبادت وزنی کیږی. او په نا خوالئ باندے تخبز عزت کیږی. او اخلاص هم دَ دے کلمے په باربار وئیلو پیدا کیږی. ځکه دے کلمے ته جلاء القلوب "دَ زړونو رڼا" کونکے وائی. ځکه صوفیان دَ دے کلمے ورد دَ سوونو او زرګونو په شمیر کښ په مرید لازموی.

ملا علی قاری لیکی. چه یو مرید شیخ ته اووے. چه زه ذکر کوم خو زړه م غافل وی. ده ورته اووے چه پرله پسے ذکر کوه. او په دے دَ الله شکر اوباسه. چه ستا ژبه یې په ذکر لګولے ده. او دَ خدائ نه دَ زړه توجه هم غواړه. په قرآن شریف کښ صفا فرمان دے. چه که ته شکر کوے نو زه به نعمتونه درکوم. نو ذکر دَ خدائ لوئ نعمت دے. په دے دَ خدائ شکر وېستل پکار دی. چه تا ته یې دَ دے توفیق درکړو.

(۳) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم مَنْ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِکَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَقَدْ ظَنَنْتُ یَا اَبَا هُرَیْرَةَ اَنْ لَّا یَسْئَلُنِیْ عَنْ هٰذَا الْحَدِیْثِ اَحَدٌ اَوَّلَ مِنْکَ لِمَا رَاَیْتُ مِنْ حِرْصِکَ عَلَی الْحَدِیْثِ اَسْعَدُ النَّاسِ بِشَفَاعَتِیْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ خَالِصًا مِّنْ قَلْبِهٖ اَوْ نَفْسِهٖ (بخاری)

ابوهریرهؓ وائی چه ما د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم نه سوال اوکړو. چه ستا د شفاعت نه زیاته فائده به په قیامت کښې څوک اخلي. دوی اوفرمائیل چه ځما په دا گمان وو چه ستا نه به مخکښې ځما نه د دے خبرے بل څوک تپوس اونه کړي. دوی اووے چه زیاته فائده به هغه څوک واخلي. چه د زړه د اخلاصه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وائي.

فائده:- سعادت د خدائی هغه توفیق ته وائي. چه د بنده د خیر سبب اوګرځي. د کلمے ویونکي د شفاعت د حق لرلو دوه مطلبه دي. اول دا چه په اخلاص یو کافر کلمه اووائي. او بیا ورته د عمل توفیق اونه شي. نو دے چه د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم شفاعت بیامومي. نو د ده نه زیاته څه چا اوکړه. ته ګوره عمل یے نشته او بخښنه یے اوشوه.

لکه یو بل حدیث دے. چه ځما د شفاعت فائده به لویو ګناه کونکو ته اورسي چه د خپلو ګناهونو په وجه به د دوزخ قابل وي. او ځما په شفاعت به خلاص شي. ځکه چه د کلمے طیبه سند د سخه وو. او چه کلمه طیبه په اخلاص وائي. او نیک اعمال یے هم وي. نو دوی ته به د شفاعت په وجه لوړے درجے ورکیدے شي. نو دا یے لویه فائده شوه.

علامه عینیؒ د شفاعت په قیامت کښې شپږ طریقے لیکلي دي. اول د میدان حشر د قید نه خلاصے دے. چه دا به د ټولو بنی آدمو د تکلیفا په وجه مطالب وي چه هر څوا مولیکي حساب د ما اسره اوشي. نو دا عمومي شفاعت به خوږ نبي صلی الله علیه وسلم اوکړي. نو پیغمبران به د دے نه عذر اوکړي. دا د کافر او مسلم ټولو شفاعت دے. دویم به د بعضے کافرانو د عذاب د سپکاوي دي. لکه د ابوطالب په باره کښې به خوږ نبي علیه السلام شفاعت کوي. دریم شفاعت به د هغه مؤمنانو

کوی . کوم چه دوزخ ته داخل شوی دی - چه دوی د دوزخ نه راوځی . څلورم هغه چه د دوی جهنم ته د تلو ډکنا هو مو په وجه تلل پکاروی . او د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په شفاعت د داخلی نه پاتے شی . پنځم بے حسابه د بعض مؤمنانو د پاره د جنت د داخلے شفاعت دے . او شپږم د مومنانو د مرتبو په وجه جنت کښ د زیا تید و شفاعت دے .

(۴) عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمْ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم مَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ مُخْلِصًا دَخَلَ الْجَنَّةَ قِيلَ وَمَا إِخْلَاصُهَا قَالَ أَنْ تَحْجُزَهُ عَنْ مَحَارِمِ اللهِ . (طبرانی)

د زید بن ارقم نه روایت دے . چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے . چه کلمه طیبه په اخلاص او وے نو جنت ته به داخل شی . او و یلے شو چه اخلاص څه نه وائی ؟ خوږ نبی علیه السلام او وے چه په کلمے د حرامو نه بچ شی .

فائده :- چه د کلمے ویونکے د حرامو نه بچ شی . نو بیا د دهٔ به ولے جنت ته داخله نه کیږی او که حرام یئے او کړل . نو د دے د سزا نه پس به د کلمے په برکت آخر جنت ته لاړ شی . و لے که حرام کاری یئے ډیره شوه . چه دے د دهٔ نه اسلام او ایمان بوتلو . نو دا بله خبره دهٔ . ځکه ابو اللیث سمرقندی په تنبیه الغافلین کښ لیکی . چه کلمه طیبه ډیره ډیره وایئ . او مخپل ایمان د بچ کید و دعاء کوئ . او ځان د ګنا ه نه بچ کوئ ځکه چه د دے ګناه په سببه نوب بندهٔ کله کله د ایمان نه خالی پاتے کیږی . او کافر د دنیا نه لاړ شی . دا به څومرهٔ د شرم خبره وی . چه د مسلمان په نوم یادید ونکے به کافرانو کښ داخل شی . د تخائے عبادت کونکے که د کافرانو په چله کښ وی . نو دا څه یئ خبره نه ده . د جمات د او سید ونکی د پارهٔ دا افسوس خبره دهٔ . او دا به پته د حرامو کارونو په وجه پیښیږی . بایو کس سره بردے مال وی . او دهٔ وائی چه دا به و د بیر ته کړم او د دهٔ نه به معافی او غواړم . او په دیګیټ چه مرګ راشی او مال و رسره پاتے شی یا بی ښځے ته طلاق ورکړو . او دے بیا هم د دے سره کور والے کوی . او مرګ پرے راشی . توبه او نه باسی . په دے ترے ایمان لاړ شی . د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ د یو ځوان ځنکد ن ته نزدے حالت رو . دهٔ به کلمه وے او دهٔ به نه شوه ویلے . خوږ نبی علیه السلام وے داولے ؟ دهٔ وے چه زړهٔ م جرتنګ غوندے لګیږی دهٔ . په تپوس معلومه شوه چه د دهٔ نه مور خفه دهٔ . خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د دهٔ مور را او غوښته .

اودے ته یې اووے. چه ستاخو سبه ده؟ چه ستا خوئی نه اوریدل شي. اودے پکښې اوغور ځولے شي؟ دے وے نه! نو خوږ نبي صلی الله علیه وسلم دے ته اُوسے. چه بیا ه خوئی او بخه - دے معافي وکړه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم بیا ده ته اووے. چه اوس کلمه وایه - نو ده کلمه اووے. خوږ نبي علیه السلام د خدائ شکر اداکړو. چه د ده په وجه یو کس د اور نه بچ شه - د غصے په بڼ گناهونه دي. چه زمونږ دین او دنیا دواړه خوار کړي.

یو ځل د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خطبه کښې اووے. چه څوک کلمه اووایي چه گډه ورېځ نه وي. نو د ده د پاره جنت واجب دے. حضرت علي کرم الله وجهه اووے چه څنګښ وړ والے څه ته وایي؟ دوی وے د دنیا په طلب کښې په پوره محبت ګیا کیده. دوی د پیرخلق د پیغمبرانو هسے خبرے کوي. او د متکبرانو هسے عمل کوي. نو څوک چه کلمه وایي. او داسے کار نه کوي. نو د دوی د پاره جنت واجب دے.

(۵) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم مَاقَالَ عَبْدٌ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اِلَّا فُتِحَتْ لَهٗ اَبْوَابُ السَّمَاءِ حَتّٰی یُفْضٰی اِلَی الْعَرْشِ مَا اجْتَنَبَ الْکَبَائِرُ. (ترمذی)

وَعَنْ مَعْقِلٍ لِکُلِّ شَیْءٍ مِفْتَاحٌ وَمِفْتَاحُ السَّمٰوٰتِ قَوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ

(رقم له بالضعف)

د ابوهریرهؓ نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه نه دے یو بنده چه کلمه به اووایي. مګر د ده د پاره به د اسمانونو دروازے پرانستے شي. تر دے چه دا کلمه نیغه عرش ته اورسي. خو چه لوئ ګناهونه نه کوي. معقل وے چه د هر یو څیز د پاره یو کونجي ده. او د اسمانونو کونجي کلمه ده او د دے په روچند ثواب وي.

فائده:- کلمه نیغه عرش ته ځي. د کلمے څومره لوئ فضیلت دے. د کبائرو نه په بچ کیدو کښې ملا علي قاري د فائده لیکي. چه په دے حالت کښې زر قبوله شي. او زر زر د اسمانونو دروازے پرانستے شي. یو حدیث دے. چه د لَا اِلٰهَ اِلَّا الله د پاره د عرش نه ښکته ځائ نشته. او الله اکبر به د زمکے او اسمان منځ رو ښانه کړي.

(۶) عَنْ عُبَادَةَ قَالَ کُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صلعم فَقَالَ هَلْ فِیْکُمْ غَرِیْبٌ اَهْلَ الْکِتَابِ قُلْنَا لَا یَارَسُوْلَ اللهِ فَاَمَرَ بِغَلْقِ

عباده وے. چه یو ځل زمونږ د خوږ نبي علیه السلام سره ناست وو. نو دوی پوښتنه اوکړه چه څوک غیرمسلم خو نشته. زمونږ وے نه!

الْاَبْوَابِ وَقَالَ اِرْفَعُوْا اَيْدِيَكُمْ وَ
قُوْلُوْا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَرَفَعْنَا اَيْدِيَنَا
سَاعَةً ثُمَّ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ
بَعَثْتَنِيْ بِهٰذِهِ الْكَلِمَةِ وَ وَعَدْتَنِيْ
عَلَيْهَا الْجَنَّةَ وَ اَنْتَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ
ثُمَّ قَالَ اَبْشِرُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفَرَ
لَكُمْ (احمد)

خوږ نبي صلی الله علیه وسلم او وے. چه دروازه
بنده کړئ. بیا یې او وے چه لاس پورته کړئ.
او لا اله الا الله او وایئ. مونږ یو ساعت لاس
پورته کړل. او کلمه مو او وے. بیا یې او وے شکر
دے اے خدایه! تا زه په دے کلمه رالیږلے یم.
او په دے کلمه دِ راسره دَ جنت وعده او کړه او ته دَ وعدے
نه خلاف نه کوے. بیا خوږ نبي موږ ته او وے. چه
مبارک شئ ستاسو خدائ بخنه او کړه

**فائده:-** دَ پردو تپوس یې ځکه او کړو. چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ته دَ دے حاضرو خلقو دَ بخنے امید وو. دَ نورو دَ پاره نه وو. په دے حدیث صوفیان دلیل نیسي چه شیخ مریدانو ته دَ ذکر دَ تلقین وینا کولے شي. او دروازه یې ځکه بنده کړه. چه دَ حاضرینو پوره توجه پیدا شي. دَ پردي تپوس یې ځکه او کړو. چه دَ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم پوره توجه وي. شعر.

خوش قسمته هغه کس دے چه یو دے وي او بل معشوق وي.
دروازه چه کړي دوي بنده شیشه پراتې عاشق ته!

(۷) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صلعم جَدِّدُوْا اِيْمَانَكُمْ قِيْلَ
يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَيْفَ نُجَدِّدُ اِيْمَانَنَا قَالَ اَكْثِرُوْا
مِنْ قَوْلِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ (احمد)

دَ ابوهریرة نه روایت دے. ده وے چه خوږ
نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه ایمان مو تازه
کوئ. اصحابو وے دا څه رنګ؟ خوږ نبي علیه السلام
وے چه کلمه طیبه ډیر کثرت سره وایئ.

**فائده:-** خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه ایمان دَ جامے په شان زړیږي. او دا په ګناهونو باندے تور یږي. او په دے دَ ایمان رڼا ځي. په ګناه په زړه تور داغ کیږي. که توبه او باسي نو لرے شي. ګني داغ شي. تر دے چه په ډیرو ګناهونو زنګ او نیسي. د دے په باره کښ خدائ وائي. كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ. د دوي کسبونو د دوي په زړونو زنګ راوستے. او چه زړه تور شي. نو په زړه هیڅ حق خبره اثر نه کوي. خوږ نبي علیه السلام دَ زړه دَ برباد‌ئ څخه خبرے.

په یو حدیث کښې سنودلی دی. دَ بیو قوفانو مقابله، دَ گناهونو پېروالے، دَ ښځو سره ډیره ناسته. او دَ هغو مالدارو سره ناسته چه په دوی کښې مالداری غرور پیدا کړے وی.

(۸) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم اَکْثِرُوْا شَهَادَةَ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَبْلَ اَنْ یُّحَالَ بَیْنَکُمْ وَبَیْنَهَا (ترغیب)

دَ ابوهریرهؓ نه روایت دے دوی وئیلی چه خود نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه کلمهٔ طیبه ډیره ډیره وایئ. مخکښې دَ دے نه چه تاسو بیا کلمه نه شئ وئیلے.

فائده:- دا دَ مرګ نه پس وخت دے. دَ ژوند ډیر لږ وخت دے. په دیکښې چه څه کړ او شی. هغه دَ مرګ نه پس چه ډیره اوږده زمانه ده. سېکاره کیږی. دا دَ لږ وخت دے.

(۹) عَنْ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم یَقُوْلُ اِنِّیْ لَاَعْلَمُ کَلِمَةً لَّا یَقُوْلُهَا عَبْدٌ حَقًّا مِّنْ قَلْبِهٖ فَیَمُوْتُ عَلٰی ذٰلِکَ اِلَّا حُرِّمَ عَلَی النَّارِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

دَ عمرؓ نه روایت دے. دوی وے چه ما دَ خود نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی. دوی وئیلی چه زه داسے کلمه پیژنم چه کوم بنده دا په اخلاص او وائی او په دے مړ شی. نو به دوی دَ دوزخ اور حرام شی. هغه کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده.

فائده:- دَ دے نه که دا مراد وی. چه یو کافر په اخلاص کلمه او وے. عمل ته سم نه شه او مړ شه نو دَ کفر هغه گناهونه ورته معاف شو. او نور یے او نه کړه. نو دے خود جهنم نه خلاص شه. او که بنده دَ کلمے نه پس ژوندے پاتے شه. نو دَ ده د خدائی دَ طرف نه دَ گناهونو معافی هم خدائی کولے شی. او ملا علیؒ قاری وائی. چه دا قسم احادیث دَ هغه وخت دی. چه یوازے کلمه وئیل فرض وو. او نور احکام لا نه وو نازل شوی. حسن بصریؒ وائی چه دَ دے نه مراد کلمه دَ نخیلو تقاضو سره پوره کول دی. امام بخاریؒ وائی چه په ندامت کلمه او وائی. او دا قسم کلمه وئیل توبه ده. او په دے وفات شی. ملا علی قاریؒ وائی چه دَ دے نه مراد همیشه په جهنم کښې نه اوسیده دی. او اصلی خبره دا ده. چه دَ کلمے اثر خو دا دے. چه بنده دَ جهنم نه بچ کوی. خو که دَ دے خلاف گناهونه او شو نو دا یو مانع راغے او که دَ دے

اثرا وته شه - نو چه د کتا هغو نو په عذاب لی ے ولے او شی. نو آخر به ئے جنت ته تله او شی.

(۱۰) عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم مَفَاتِيْحُ الْجَنَّةِ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ (احمد)

د معاذ بن جبل رض نه روایت دے. دہ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه د جنت کونجی د کلمے طیبے شهادت دے.

فائده:- د جنت ډیرے دروازے دی. او د دے کلمے هم دوه جز ونه دی. نو د هرے دروازے کونجی دا کلمه شوه. یو د خدائی یو والے او بل د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د رسالت شهادت. په یو روایت کښ راځی چه دا کلمه د جنت قیمت دے چه دا او وائی نو ګویا د جنت قیمت ورکړے شه.

(۱۱) عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ فِيْ سَاعَةٍ مِّنَ اللَّيْلِ اَوْ نَهَارٍ اِلَّا طُمِسَتْ فِي الصَّحِيْفَةِ مِنَ السَّيِّئَاتِ حَتّٰى تَكُوْنَ اِلٰى مِثْلِهَا مِنَ الْحَسَنَاتِ (ترغیب)

د انس رض نه روایت دے. دہ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه کوم بنده په شپه او ورځ کښ څه وخت کلمه او وائی. نو د ده د عملنامے نه بدئ ورانے شی او د دے په ځائی پکښ نیکئ او لیکلے شی.

فائده:- په دے حکښ بحث تیر شوے دے. دا کلمه چه په اخلاص وائی نو د دے دا اثر دے. او اخلاص هم د دے کلمے په ډیرو ویلو پیدا کیږی. ځکه دے ته د اخلاص کلمه وائی.

(۱۲) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلعم اَنَّ لِلّٰهِ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى عَمُوْدًا مِّنْ نُّوْرٍ بَيْنَ يَدَيِ الْعَرْشِ فَاِذَا قَالَ الْعَبْدُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اهْتَزَّ ذٰلِكَ الْعَمُوْدُ فَيَقُوْلُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اُسْكُنْ فَيَقُوْلُ كَيْفَ اَسْكُنُ وَلَمْ تَغْفِرْ لِقَائِلِهَا فَيَقُوْلُ اِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لَهٗ فَيَسْكُنُ عِنْدَ ذٰلِكَ (ترغیب)

د ابوهریره رض نه روایت دے. دہ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه د خدائی د پاره د نورا یو ستن ده. د عرش په مخکښ هر کله چه بنده کلمه او وائی. نو دا ستن په خوزیدو او لړزی. پس خدائی ورته او وائی چه قلاره شه. دا ورته او وائی چه څه رنګ قلاره شم. اند دے کلمے ویونکی لا نه دے بخلے شوے. نو خدائی ورته او وائی چه ما دے او بخه. نو دا په دے وخت کښ په قلاره شی.

فائده :- خدائی دا کلمه د بنده په ژبه جاری کوی. چه د ده بخښنه اوکړی. دا د الله لوئی احسان دے. چه ده ته یې د دے کلمے د وینا توفیق ورکړو. او په دے یې بیا اوبښه.

د عطاء د لیونئ وینځې قصه تیره شوے ده. چه دے به وے. چه اے خدایه زه تا ته په هغه محبت قسم درکوم. کوم چه ستا ځما سره دے. او چه عطاء ورته اووے. چه داسے ووایه ونګ تو دے ورته اووے. ـــ ـــ ـــ ـــ چه که د خدائی ځما سره محبت نه وے. نو زه به یې د تهجد و د پاره ولے پاسولم. او ته دغه د او دکه یې. او بیا یې دا اشعار اووے.

اَلْكَرْبُ مُجْتَمِعٌ وَالْقَلْبُ مُحْتَرِقٌ ؛ وَالصَّبْرُ مُفْتَرِقٌ وَالدَّمْعُ مُسْتَبِقٌ

كَيْفَ الْقَرَارُ عَلٰى مَنْ لَا قَرَارَ لَهٗ ؛ مِمَّا جَنَاهُ الْهَوٰى وَالشَّوْقُ وَالْقَلَقٗ

يَا رَبِّ اِنْ كَانَ شَيْئٌ فِيْهِ لِیْ فَرَجٌ ؛ فَامْنُنْ عَلَیَّ بِهٖ مَا دَامَ بِیْ رَمَقٌ

بے آرامی جمع شوے ده او زړه مے سوځی ؛ او صبر جدا شویدے او اوښکې بهیږی.

څه رنګ آرام کولے شی چه په هغه عشق ؛ شوق او بے آرامی د حملو په وجه بے آرام وی

اے خدایه د اسے څیز کیدے شی چه هغے کښ ځما خوشحالی وی ؛ نو احسان اوکړه په ما د هغے سره څو چه زه ژوندے یم.

بیا یې اووے. چه خدایه ځما ستا هغه معامله ښکاره شوه نو ما اوس دا خلے په دے یې چغه اووهله او مړه شوه. د دے قسم واقعات نه معلوم شوه. چه تر څو د خدائی توفیق شامل حال نه وی. تر هغې هیڅ نه شی کیدے. وَمَا تَشَاۤءُوْنَ اِلَّاۤ اَنْ يَّشَاۤءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ. نه یې د خدائی د خوښے هیڅ نه شئ غوښتے.

(۱۳) عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَيْسَ عَلٰى اَهْلِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْشَةٌ فِیْ قُبُوْرِهِمْ وَلَا فِیْ مَوْتِهِمْ وَلَا مَنْشَرِهِمْ وَكَاَنِّیْ اَنْظُرُ اِلٰى اَهْلِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَهُمْ يَنْفُضُوْنَ التُّرَابَ عَنْ رُءُوْسِهِمْ وَيَقُوْلُوْنَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ

د ابن عمر نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبی وے. چه نشته د کلمے ویونکی باندے پر دے والے په قبرونو د دوی کښ او نه د مرګ په وخت کښ او نه د تیرنه بیا پاسیدو کښ او دغه وخت ځما مخے ته دے. چه دوی د سرونه خاوره لرے کوی. د قبرونو نه څی. او وائی شکر دے چه خدائی

اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ زمونږ نه غم او تکليف لرے کړو.

فائدہ:- ابن عباسؓ وائى ـ چه يو ځل ارجبريلؑ دَخوږ نبى صلى الله عليه وسلم سره ناست وو ـ دوئى کيده ـ نبى صلى الله عليه وسلم سره دَ دعا کيږى - دا ته يې اووے. چه خدائ سره دَ علم نه حُما په واسطه تپوس کوى. چه ته په څه خفه يې؟ دا وے چه ما سره دَ خپل امت غم دے؟ چه په قيامت کښ به دَ دوی څه حال وی. جبريلؑ وے. دَ کافرانو په باره کښ که دَ مسلمانانو؟ دوی او وے. دَ مسلمانانو په باره کښ جبريلؑ خوږ نبى عليه السلام مقبرے ته بوتلو. او په يو قبر يې پَر او واهه. دَ دے نه يو رونړ مخے بنده راپو ره ته شه. او ده لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وے. جبريلؑ ورے څه بيرته څه! بيا يې په قُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ دَبل قبر سرے ژوندے کړو. دے ډير بد شکل شين سترګے وو. ده وے افسوس ارمان. ده ته هم جبريلؑ وے بيرته څه. بيا يې خوږ نبى صلى الله عليه وسلم ته او وے. چه بنده په کوم حالت مرى هم په هغه حالت به پاسى. دَ لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ويونکونه مراد دَ دے کلمے سره تعلق لرونکى دى. لکه پيو واله هغه دى چه خاص پيئ ورسره وى. او داخر څوى.

دَ قرآن شريف په سورة فاطر کښ دَامت محمدى درے طبقے بيان شويدى. يوه سابق بالخيرات ده. چه هغه به بے حسابه جنت ته ځى. حديث دے. چه څوک لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ سل ځله اداوائى. نو دده مخ به دَ قيامت په ورځ دَ څوار لسمے سپوږمئ هسے برېښنا کوى. ابو درداء وائى. چه دَ چا ژبے په ذکر لوندے وى. نو دوى به جنت ته په خندا خندا داخليږى.

(۱۴) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِوبْنِ الْعَاصِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يَسْتَخْلِصُ رَجُلًا مِّنْ اُمَّتِىْ عَلٰى رُءُوْسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَيَنْشُرُ عَلَيْهِ تِسْعَةً وَّتِسْعِيْنَ سِجِلًّا كُلُّ سِجِلٍّ مِّثْلُ مَدِّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَقُوْلُ اَتُنْكِرُ مِنْ هٰذَا شَيْئًا اَظَلَمَكَ كَتَبَتِيْ الْحَافِظُوْنَ فَيَقُوْلُ لَا يَارَبِّ

دَ عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دے چه خوږ نبى صلى الله عليه وسلم وے. چه دَ قيامت په ورځ به حُما دَامت نه يو بنده چونړ کړے شى دَ خلقو په مخکښ او دده به مخکښ به يو کم سل کتابونو دفترونه کېخودے شى. اوهر يو به دَ سترګو دَ نظر او مره اوګد وى. بيا به ورته خدائ اووائى چه ته په ديکښ دَ کوم نه انکار کوے.

فَيَقُوْلُ اَفَلَكَ عُذْرٌ فَيَقُوْلُ لَا يَا رَبِّ
فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى بَلٰى اِنَّ لَكَ عِنْدَنَا
حَسَنَةً فَاِنَّهُ لَا ظُلْمَ عَلَيْكَ فَاُخْرِجَ
بِطَاقَةٌ فِيْهَا اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ
فَيَقُوْلُ اُحْضُرْ وَزْنَكَ فَيَقُوْلُ يَا
رَبِّ مَا هٰذِهِ الْبِطَاقَةُ مَعَ هٰذِهِ السِّجِلَّاتِ
فَقَالَ فَاِنَّكَ لَا تُظْلَمُ الْيَوْمَ فَتُوْضَعُ
السِّجِلَّاتُ فِيْ كِفَّةٍ وَالْبِطَاقَةُ فِيْ كِفَّةٍ
فَطَاشَتِ السِّجِلَّاتُ وَثَقُلَتِ الْبِطَاقَةُ
فَلَا يَثْقُلُ بِهٖ مَعَ اللّٰهِ شَيْءٌ ۔ (ترمذی)

ولے ځما ملائکو په تا په ليکلو کښ زياتے کړيدے؟
دے به وائي چه نه. بيا به ورته خدائ وائي.
چه ستا سره څه عذر شته؟ دے به وائي چه
نه. خدائ پاک به اووائي. چه ستا يوه نيکي ځما
سره شته. په تا به ظلم نه کيږي. نو دَ کاغذ
يوه وړه ټکړه به را اوخکے شي. چه په
هغې به دَ شهادة کلمه وي. دَه ته به اوويلے
شي. زه دا اوتله. دے به اووائي دا دَ دغه
دفترونو مقابله کله کولے شي؟ نو دا به په يو اړخ
او دفترونه به په بل اړخ کښ شي. او دا به
ترے دروند شي. دَ الله دَ نوم هومره وزن دَچا کيدے شي

فائده:- دا دَ اخلاص برکت دے. چه يوکله اريه اخلاص کلمه په ټولو دفترونو
غالبه شوه. او دغه وجه ده چه هيڅ مسلمان ته سپک کتل نه دي پکار ځکه چه نه ده
معلوم چه دَچا کوم يو عمل دَ خدائ سره قبول دے. او په دے ئي خلاصے دَ کيدو دے.
هر بنده دې په ځان يريږي چه ګوره ځما به څه حال وي؟

دَ بني اسرائيلو دَ دوو تنو قصه په حديث کښ راځي. چه يو عابد او بل ګنهګار
وو. يوه ورځ دے عابد دے ګنهګار ته اووے. چه "خدائيګو که ستا بخنه اوشي."
نو خدائ پاک دوی په عالم ارواح کښ يوځائ کړه. او دَ ګنهګار چه دَ رحمت اميدوار
وو دے ئي معاف کړو. او دا عابد ئي په دے قسم په عذاب کړو. داځکه چه خدائ
پاک خووائي. چه زما بے دَ شرک نه بل هر ګناه بخښم. چه زه اوغواړم. نو بل چا ته کله دا
حق حاصل دے. چه اووائي چه دَ فلانکي به بخنه نه کيږي. خو دَ دے دا مطلب
هم نه دے. چه ګنې په ګنهګار به ګرفت نه کيږي. او دَ بدئ نه به نه شي منع کيدے.
ځکه چه دَ دوی دَ منع حکم هم را غليدے. که دوی منع نه کړے شي. نو نيکان به په
دے په عذابيږي. که يو ګنهګار ته جهنمي ويئل منع دي. نو په هر سړي دَ زيرک
يقين کول سره دَ دے چه خلاف شرع ډونډ تيري وي دا هم منع دي. ځکه چه خوږ

نبی صلی الله علیه وسلم وائی. چه څوک د بدعتی بنده ادب کوی. نو د ه د دین په
ورانولو کښ امداد اوکړو. خوږ نبی علیه السلام وائی چه په آخر زمانه کښ به داسے دجالان
او دروغژن پیدا شی. چه هغوی به وته داسے احادیث اوروی چه تا سو به نه وی
اوریدلی. هسے نه دوی مو په فتنه کښ او غورزوی.

(١٥) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْ جِيْئَ بِالسَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَنْ فِيْهِنَّ وَمَا بَيْنَهُنَّ وَمَا تَحْتَهُنَّ فَوُضِعْنَ فِيْ كِفَّةِ الْمِيْزَانِ وَوُضِعَتْ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فِي الْكِفَّةِ الْاُخْرٰى لَرَجَحَتْ بِهِنَّ (طبرانی)

د ابن عباس رض نه روایت دے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه ځما په هغه خدائ قسم دے. چه ځما نفس د ده په قدرت کښ دے. چه که اسمانونه او زمکه او هرڅه چه په دیکښ دی. او د دے د لاندے دی. دا د تلے په یو چابړی کښ کیخودے شی او کلمه د شهادة په بل چابړی کښ نو دا کلمه د شهادة به په دے دروند شی.

فائده:- واقعی د خدائی د نوم سره د دنیا مخلوق کله د برابرئیا طاقت لری. هغه خلق ډیر بد قسمت دے. چه دا کلمه سپکه گنړی. خو گورے په دے کلمه کښ دا دروند والے په اخلاص پیدا کیږی. چه څومره اخلاص وی نو دومره به یې وزن وی. او د دے اخلاص د پیدا کولو د پاره د صوفیا نو پیرے سمول کیدے شی. د غه وجه ده چه خوږ نبی علیه السلام مړی ته د کلمے د یلو مونږ ته حکم کوی. خوږ نبی علیه السلام وے. چه د دے په وینا جنت واجبیږی. چاوے که روغ یې او وائی نو هم. دوی اووے. چه دا خو ډیره ښه خبره ده.

(١٦) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ ثَلٰثَةٌ كَانُوْا عِنْدَ النَّبِيِّ صلعم فَقَالُوْا يَا مُحَمَّدُ مَا نَعْلَمُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا غَيْرَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ بِذٰلِكَ بُعِثْتُ وَاِلٰى ذٰلِكَ اَدْعُوْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تعالیٰ فِيْ قَوْلِهِمْ قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً (ابن اسحاق)

ابن عباس رض وے چه یو ډله ارد دے کافران راغله او خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته یې اووے. چه ته د خدائ سره هیڅوک شریک نه منے؟ دوی وته اووے چه زه خو په لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رالیږلے شوے یم. چه د خدائ هیڅوک شریک نشته او د دے خلقو ته بلنه ورکوم. په د پاره کښ دا آیت چه قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً نازل شه.

فائدہ:- دَ دے کلمے لوئ شان ته لږ فکر اوکړئ. چه په دے کلمے دَ آدم علیه السلام نه تر محمد صلی الله علیه وسلم اوَ دے یو خدائ طرف ته په بلنه ټول مذاهب متفق دی. او خدائ په خپله دَ دے په خپل قرآن کښ تصدیق اوکړو. چه ته دے خلقو ته اووایه. چه دَ کلمے نه لوئ څیز بل څه ته دے؟ په لویو کښ دَ ټولو نه لویه کلمه دَ شهادة ده. الله دِ دا زمونږ په هر حالت کښ نصیب کړی. آمین

(۱۷) عَنْ لَيْثٍ قَالَ قَالَ عِيسٰىؑ اُمَّةُ مُحَمَّدٍ صلعم اَثْقَلُ النَّاسِ فِي الْمِيْزَانِ ذَلَّتْ اَلْسِنَتُهُمْ بِكَلِمَةٍ ثَقُلَتْ عَلٰى مَنْ كَانَ قَبْلَهُمْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ.

(اخرج الاصبهانی)

دَ لیث نه روایت دے. ده وے عیسیٰؑ وے چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم امت به په قیامت کښ تله دَ ټولو امتونو څخه زیاته درنه وی چه دَ دوی ژبے دَ داسے کلمے سره عادت دی چه په نورو امتونو دا کلمه درنه وه. چه هغه لَا اِلٰهَ اِلَّا الله ده.

فائده:- دا صحیح ده. چه دَ کلمے وظیفه دَ سوونو نه دَ زرګونو په شمیر کښ کول په شپه او ورځ کښ صوفیان په خپله او په خپلو مریدانو کوی. ښځه زره څوک دَ معمولی وظیفه ده. او صوفیان خو دا څو یشت زره ګذاره وائی. نو دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دا وینا صحیح ده. چه دَ کلمے وظیفه په امتِ محمدیؐ کښ ډیره ډیره ده. تو دے چه شاه ولی الله صاحب په قولِ جمیل کښ په یوسا دوه سوه ګذاره دَ دے وئیل نقل کوی. شیخ ابو یزید قرطبی وائی. چه ما اوریدلی دی. چه کوم بنده اویا ګذاره لَا اِلٰهَ اِلَّا الله اووائی. نو دے په دَ دوزخ دَ عذاب نه خلاص شی. نو ما دا مقدار دَ ځان دَ پاره ډیر ګذاره او دَ ښځی دَ پاره هم پوره کړو. چه زمونږ دَ آخرة ذخیره اوګرځی.

زمونږ سره یو ځلے اوسیده. چه هغه تر دے په صاحب کشف مشهور وو. چه ده ته به دَ جنت او دوزخ کشف هم کیده. ځما په ده شک وو. یوه ورځ ده زمونږ سره ډوډۍ خوړه. چه چغه یے کړه او ساه یے را اوبرسیده. او وه اوے ځما مور په دوزخ کښ سوزی. نو ما دا اولیده. قرطبی وائی. چه ما ذده دَ مور دَ پاره یو دَ کلمے اویا زره نصاب اوباخه. په دے رمز دَ ده رښتینوالے معلوم وو.

اودا بخته مې پته اوکړه . په دې کېښ ده اته اووې. چه ما د مورنه عذاب لرې شه قرطبی وائی چه په دې مانه دوه تجربې اوشوې. یو دا چه اویا زره کلمه د کلمو په ویلو . د دوزخ د عذاب نه خلاصې کیږي . اوبل دا چه د دې خلقو دېښتونوالې هم معلوم شه .

صوفیان یو مشق کوي. چه هېڅ ساه بې د ذکرنه ، نه دننه ځي اونه به باهر راوځي . دا مشق کروړو نو خلقو ته حاصل دې. دغه وجه ده چه عیسٰی علیه السلام وې . چه امت محمدي د کلمې سره ډېر عادت دې.

(۱۸) عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ مَکْتُوْبٌ عَلٰی بَابِ الْجَنَّةِ اِنَّنِیْ اَنَا اللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنَا لَا اُعَذِّبُ مَنْ قَالَهَا ۔ (رد)

د ابن عباسؓ نه روایت دې. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وې . چه د جنت په دروازې داسې لیکلی شوي دي. چه خاص زه الله یم. ځما نه سیوا بل معبود نشته . څوک چه دا کلمه وائی نو زه به دې نه عذابوم .

فائده :- په کتاب عذابیده خو د نورو احادیثو نه ثابت دي. نو د دې به دا مطلب وي. چه دوی ته به د همیشه عذاب نه وي. خو که د خدائ خاص رحمت اوشي. او گناهونه ورته هم معاف شي. نو دا هم څه لرې خبره نه ده . د خدائ لوئ شان دې.

(۱۹) عَنْ عَلِیٍّ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم عَنْ جِبْرِیْلَ قَالَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ اِنِّیْ اَنَا اللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنَا فَاعْبُدُوْنِیْ مَنْ جَاءَ نِیْ مِنْکُمْ بِشَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ بِالْاِخْلَاصِ دَخَلَ فِیْ حِصْنِیْ وَمَنْ دَخَلَ فِیْ حِصْنِیْ اَمِنَ عَذَابِیْ (رد)

د حضرت علیؓ نه روایت دې. دوی چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د جبرئیلؑ نه روایت کوي. چه خدائ دې . چه زه یو خدائ یم . بل خدائ نشته . پس زما عبادت کوئ. څوک چه ما ته د دې کلمې په شهادة چه خدائ یو دې راغې. په اخلاص سره نو دې ځما قلائه داخل شه او په دې د عذاب نه بچ شه .

فائده :- که دا بخته په دې شرط وي. چه دا بنده د لویو گناهونو نه ځان ساتي. نو هم کیدې شي. یا به د دې نه مراد د همیشه عذاب وي . چه سره د کبائرو نه کلې د همیشه عذاب نه بنده بچ کوي. او که خصوصي رحمت اوشي. او د سره معاف شي . نو هم

څه بعیده نه ده. حدیث دے. چه په لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه د خدائ قهرلرے کیږی. ترڅو چه دنیا په دین مخکښ نه کړی. او چه دنیا په دین مخکښ کوی. او کلمه وائی نو خدائ ورته وائی. چه ته دروغ وائے. وائی یوڅه او کوے بل څه؟

(۲۰) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَفْضَلُ الذِّکْرِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اَفْضَلُ الدُّعَاءِ الْاِسْتِغْفَارُ ثُمَّ قَرَءَ فَاعْلَمْ اَنَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اسْتَغْفِرْ لِذَنْبِکَ۔ (طبرانی)

د عبد الله بن عمرؓ نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه غوره په ذکرو نو کښ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه دے. او غوره په دعاګانو کښ استغفار دے. بیائے د سورة محمد دا ایت وے چه پوهه شه. چه الله یو دے او د خپل ګناه بخنه او غواړه

فائده:- د دے وجه صوفیان دا بیانوی. چه د کلمے په ذکر کښ د زړه د پاکوالی د پاره ډیر اثر دے. په دے زړه د هر قسم پلیتونه پاکیږی. حدیث دے چه یونس علیه السلام به د مهی په ګیډه کښ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ سُبْحَانَکَ اِنِّیْ کُنْتُ مِنَ الظَّالِمِیْنَ وے. ځوک چه په دے لفظونو دعا کوی. نو هغه ضرور قبلیږی. په بعض احادیثو کښ الحمد لله او په بعض کښ استغفار هم راغلی دے. دا اختلاف د حالاتو په اختلاف دے. یو متقی پرهیزګار د د الحمد لله ذکر ډیر کوی. او یو ګنهګار د استغفار ډیر وائی. بل که څه نفع غواړے نو الحمد لله ډیر وایه. او که د څه تنکسیا لرے کول غواړے نو استغفار پکار دے.

(۲۱) عَنْ اَبِیْ بَکْرِنِ الصِّدِّیْقِؓ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَلَیْکُمْ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ الْاِسْتِغْفَارِ فَاَکْثِرُوْا مِنْهُمَا فَاِنَّ اِبْلِیْسَ قَالَ اَهْلَکْتُ النَّاسَ بِالذُّنُوْبِ وَ اَهْلَکُوْنِیْ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ الْاِسْتِغْفَارِ فَلَمَّا رَاَیْتُ ذٰلِکَ اَهْلَکْتُهُمْ بِالْاَهْوَاءِ وَهُمْ یَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُهْتَدُوْنَ ۞

د ابو بکر صدیقؓ نه روایت دے. د دے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه تاسو ضرور کلمه او استغفار روا ییئ. ځکه چه ابلیس وائی. چه ما دوی په ګناهونو هلاک کړل. او دوی زه په کلمه او استغفار هلاک کړم. او چه ما دا اولیدل نو دوی م په بدو خواهشونو او نکول. چه کوی ګناه او دوی دا خیال کوی. چه ګټے دا هدایت دے.

فائده:- د شیطان ټول کوشش دا دے. چه د مسلمان زړه زهرجن کړی. او دا زهر په زړه هله اثر کوی. چه زړه د ذکر نه خالی وی. او چه زړه ذاکر وی نو د ترے بیرته

حئي. دا ذکر د زړه د صفائۍ ذریعه ده د مشکوٰة شریف حدیث دے. چه د هر څیز د پاره صفائي کونکے شته. او د زړه د صفائۍ ذریعه ذکر دے. چه کلمه او استغفار وائي. دوی دا زړه دا سے صفا کوي. لکه یه لوند ه چیړه چه شیشه صفا کیږي. په لا اِلٰهَ صفائي کیږي او په اِلَّا اللہ په زړه کښ نور پیدا کیږي. ځکه ابلیس نامراد حئي. او د نفس د هوا د تابعدارئ دا مطلب دے. چه ناحق حق او کنړي او چه څه یې په زړه کښ راحئ. هغه دین او مذهب او کنړي. قرآن وائي اَفَرَءَیْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوَاهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰی عِلْمٍ. ته ده ته گوره چه د خپل خواهش خبره یې معبود گرځولے دے. او دے سره د علمه گمراه دے. د عیسیٰ نور آیتونه هم شته. دا د شیطان ډیره زوره داره حمله ده. چه ید دینئ ته د دیند ارئ جامه ور اغوندوي. او بنده وائي چه په دے به مانه ثواب راکیدے شي. دے د دے نه کله توبه او باسي پس دے په دے کښ بوخت پروت وي. او په دیکښ ورځ تر ورځه ترقي کوي ځکه هر چا ته یکار دي. چه په هره معامله کښ د خوږ نبي صلی اللہ علیه وسلم او د اصحابو تابعداري کوي. او د خلاف سنت کار نه ځان ساتي. امام غزالی د حسن بصري نه دا قسم مضمون نقل کړیدے. ډیر افسوس دے. چه بنده په شیطان لعنتونه وائي. او تابعداري د دښمن شیطان کوي. یکار خو د محسن خدائ تابعداري ده اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنَا اتِّبَاعَهٗ.

(۲۲) عَنْ مَعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لَا یَمُوْتُ عَبْدٌ یَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ یَرْجِعُ ذٰلِکَ اِلٰی قَلْبِ مُؤْمِنٍ اِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ وَفِیْ رِوَایَةٍ اِلَّا غَفَرَ اللّٰهُ. (ترمذی)

د معاذ بن جبل نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبي صلی اللہ عَلَیْهِ وَسلم وے. چه کوم بنده په دے حالت کښ مړ شي. چه په یوخ زړه کلمه وائي. نو ضرور به جنت ته داخل شي. یا د ده په ضرور مغفرت او شي.

فائده:. ددے احادیثو نه د جنت وعده معلومیږي. په دے کښ څه شک دے چه د بنده په زړه کښ اخلاص او ورسره عمل هم وي. نو که گناه هونه ورسره هم نو یا به د دے د سزا موندو نه پس جنت ته لاړ شي. یا دا چه که چرے مالک الملک او غفور الرحیم خدائ ته د ده اخلاص دومره قبول شي. چه د سره دا گناهونه ورته

هم معاف کړی. نو هغه مالک الملک دے. دَ هغه نه څوک د تپوس نشته. چه دا
ډیر لے سره دَ ګناه نه معاف کړه. خو دَ خولے عمل دَ خدائ سره هیڅ دَکار نه دے
الله دِ موږ دَ دیا نه اوساتی.

یحیٰ ابن اکثم د یو لوئ محدث تیر شوید ے. دے چه مړشه نوچا په خوب کښ
اولیده. تپوس ترے اوشه. چه وایه څه درپیخه شوه؟ ده وے. چه خدائ پیښی اوشوه
نوخدائ راته اووے. چه اے بډا ګناهګاره! تا دا فلانکے فلانکے ګناه کړ یدے؟
ګناهونه ئې راته اوشمارل. نه خبر نه وے چه دا کار و نه دِ کول. ما ورته عرض اوکړو
چه ماته خو داحدیث رارسیدلے دے. چه عبدالرزاق دَ معمر نه او هغه دَ زهری
نه او هغه دَ عروه نه او هغه دَ عایشہ رض نه اووے دَ خود نبی صلی الله علیه وسلم نه
او ده دَ جبرئیل علیه السلام نه ده وے چه څوک په اسلام کښ بډا شی. او زه
ده ته سزا ورکول او غوارم. ولے ماته دَ ده بډا والے مانع اوکرځی. زه دَ ده نه
اوشرمیږم. او دے معاف کړم. خو خدایه تاته معلومه ده چه زه بډا یم. نو
خدائ راته اووے چه دے ټولو راویانو ریښتیا ویلی دی. یحیٰ وے چه دَ
دے نه پس زه جنت ته لاړم.

(۲۳) عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم لیس شَیْئٌ اِلَّا بَیْنَهٗ وَبَیْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ اِلَّا قَوْلُ لَااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَدُعَاءُ الْوَالِدِ. (در)

دَ انس رض نه روایت دے. ده وے چه خود نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه دَ هر عمل دَ پاره خدائ پاک ته دَ رسید و پرده ده. مګر دَ کلمے او دَ پلار دَ دعا دَ پاره چه دَ اولاد دَ پاره اوکوی هیڅ
پرده نشته.

دَ یو کافر قصه ده وائی. چه دے ډیر سخت متعصب ضدی وو. اتفاقاً
په یو جنګ کښ مسلمانانو اونیوه. ده په مسلمانانو ډیر ظلم کړے وو. ځکه هغوی
دا فیصله اوکړه. چه دے بی په دیګ کښ واچوو او په اور کښ یې کیخودوه. ده اول
خپلو خدایانو ته چغے اووهلے. چه خدمت اوکړئ. چه هیڅ او نه شوه. نو
دغلته مسلمان شه. او کلمه یې اووے. او لا اله الا الله یې په ډیر اخلاص او
چغو په دردناک آواز اوائد از کښ او وے. نو خدائ ته دا ادا محبوب شوه

او یاران یې پرې ټابنیکے کړو. په دے اورمړ شه - اوسیلئ پرے ما اوسته. چه هغے وادیک پوره ته کړو. اولی ے چرته د کافرانو یوکلی ته یې اورسوو. کافرانو چه دا قصه اولیده نو حیران شو. چه داڅه قصه ده. نو دوی د ده نه ټپوس اوکړو دا ورته خپله ټوله قصه اوکړه. چه زه خود کلمے په برکت راخلاص شوم. دوی چه دا واوریدل نو ټول کافران مسلمانان شول.

(۲۴) عَنْ عُتْبَانَ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يُّوَافِيَ عَبْدٌ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَبْتَغِيْ بِذٰلِكَ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا حَرَّمَ عَلَى النَّارِ- (بخاری)

عتبان رض د مالک ځوئ دے. چه خوږ بنی صلی اللّٰه علیه وسلم وے. چه هر بنده چه په اخلاص د اللّٰه د رضا د پاره کلمه وائي. او د خدائ سره ملاقات اوکړی. نو په ده جهنم حرام دے.

فائده:- په کلمه د جهنم حراموالے یا دا چه د ګناهونو د سزانه پس به همیشه په دوزخ کښ نه وی. یا که لکه د روایاتو نه معلومیږی. چه خدائ به ورته ګناهونه اوشماری. خو بیا به ورته وائي چه زه ستّاریم. په تا م په دنیا کښ پرده اچولے وه. اوس درباندے هم پرده اچوم. اوګناهونه درته معاف کوم. نو دا هم کیدے شی. چه د سره هیڅ و جهنم ته لاړ نه شی. نو که ذاکرین هم په دے کښ ما شی. نو څه بعیده نه ده. دا د یر برکتی او د خیر کلمه ده. ځکه خو مرګ چه د دے ډیره وظیفه اوشی. نو ډیره به ښه وی. ښکا نو خود دے کلمے برکات پیژندله. ځکه یې پرے ټول عمرونه اوتکول. او کتنے یې اوکړے.

(۲۵) عَنْ يَحْيَى بْنِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ رُؤِيَ طَلْحَةُ حَزِيْنًا فَقِيْلَ لَهٗ مَالَكَ قَالَ اِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ كَلِمَةً لَا يَقُوْلُهَا عَبْدٌ عِنْدَ مَوْتِهٖ اِلَّا نَفَّسَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَتَهٗ وَاَشْرَقَ لَوْنُهٗ وَ رَاٰى مَا يَسُرُّهٗ وَمَا مَنَعَنِيْ اَنْ

د یحیی نه چه د طلحه او هغه د عبد اللّٰه ځوئ دے روایت دے. ده وے. چه طلحه غمژن اولیدے شو. نو چا ورته اووے. چه دا ولے؟ ده وے چه ما د خوږ بنی صلی اللّٰه علیه وسلم نه اوریدلی دی. دوی وے چه ما ته یوه کلمه معلومه ده خو کل چه دا د مرګ په وخت کښ اووائي. نو د مرګ د تکلیف نه به خلاص شی. رنګ به یې

اَسْاَلَهٗ عَنْهَا اِلَّا الْمَقْدُرَةِ عَلَيْهِ حَتّٰى
مَاتَ فَقَالَ عُمَرُ اِنِّىْ لَاَعْلَمُهَا
قَالَ فَمَا هِىَ قَالَ لَا نَعْلَمُ كَلِمَةً
هِىَ اَعْظَمُ مِنْ كَلِمَةٍ اَمَرَ بِهَا
عَمَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ فَهِىَ
وَاللّٰهِ هِىَ ۔ (رمد)

بر بیښنا اوکړی ۔ او دَ خوشحالئ مخه به او وینی ۔
خو ما ته دَ دے تپوس سره دَ قدرت نه اونه کړو ۔
په دے خفه یم ۔ عمر رضی الله عنه ورته او وے چه دا کلمه خو
ما ته معلومه ده ۔ طلحه دَ خوشحالئ نه او وے
چه کومه یوه ده ۔ عمر رضی الله عنه وے چه ما ته معلومه
ده ۔ چه هیڅ کلمه دَ دے نه لویه نشته کوم چه خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم خپل تره ابو طالب ته پیش کړے وه ۔ او هغه کلمه لا اِلٰهَ
اِلَّا اللّٰه ده ۔ ده وے خدایکو هم دا ده ۔

فائده :- ابن حجر په منبهات کښ لیکی ۔ چه ابو بکر رضی الله عنه وے چه تیارے پنځه دی ۔ او پنځه دَ دے
ډیوے دی ۔ دَ دنیا محبت تیاره ده او دَ دے ډیوه پرهیزګاری ده ۔ او ګناه تیاره
ده ۔ دَ دے ډیوه توبه ده ۔ قبر تیاره ده او دَ دے ډیوه لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ
اللّٰه ده ۔ آخرت تیاره ده ۔ دَ دے ډیوه نیک عمل دے ۔ او پل صراط تیاره ده دَ دے
ډیوه یقین دے ۔

رابعه عدویه مشهوره ذیرکه بی بی وه ۔ دے به ټوله شپه مونځ کوو ۔ دَ
صبا نه روستو به لږه اوده شوه ۔ چه رڼا به شوه ۔ نو دا به په ویره راپاسیده ۔
او ځان به یئے ملامته کړو چه ته به تر کومه اوده یئے ۔ ډیره زر به دَ قبر زمانه راشی
نو بیا به تر شپیلئ پورے اوده یئے ۔ چه دَ دے دَ مرګ وخت راغے ۔ نو دے
خد متګارے ته او وے ۔ چه ما دَ دے وړئ په کمبل کښ چه ما به پکښ تهجد
کول ۔ کفن کړه ۔ او ځما دَ مرګ نه هیڅوک مه خبروه ۔ نو هم دغسے دَ دے کفن
دفن اوشه ۔ بیا دے خادمے دا په خوب کښ اولیده ۔ چه دے ډیرے ښا ښسته
جامے اغوستے وے ۔ خادمے ورته او وے ۔ چه ستا هغه کمبل څه شوه ؟
چه ما پکښ ته ښخه کړے وے ؟ دے ورته او وے ۔ چه هغه خو ځما دَ عملو نو سره
او نغښته شوه ۔ خادمے ورته او وے ۔ چه ما ته لږ نصیحت اوکړه ۔ دے ورته
او وے چه دَ الله پاک ذکر ډیر کوه ۔ په دے به د قبر رو ښا نه
شی ــــ !

(۲۶) عَنْ عُثْمَانَ قَالَ اِنَّ رِجَالًا مِّنْ
اَصْحَابِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ
حِیْنَ تُوُفِّیَ حَزِنُوْا عَلَیْهِ حَتّٰی کَادَ
بَعْضُهُمْ یُوَسْوِسُ قَالَ عُثْمَانُ
وَکُنْتُ مِنْهُمْ فَبَیْنَا اَنَا جَالِسٌ مَرَّ
عَلَیَّ عُمَرُ وَسَلَّمَ فَلَمْ اَشْعُرْ بِهٖ
فَاشْتَکٰی عُمَرُ اِلٰی اَبِیْ بَکْرٍ ثُمَّ اَقْبَلَا
حَتّٰی سَلَّمَا عَلَیَّ جَمِیْعًا فَقَالَ اَبُوْ
بَکْرٍ مَا حَمَلَكَ عَلٰی اَنْ لَّا تَرُدَّ عَلٰی
اَخِیْكَ عُمَرَ سَلَامَهٗ قُلْتُ مَا فَعَلْتُ
فَقَالَ عُمَرُ بَلٰی وَاللّٰهِ لَقَدْ فَعَلْتَ
قَالَ قُلْتُ وَاللّٰهِ مَا شَعَرْتُ اَنَّكَ
مَرَرْتَ وَلَا سَلَّمْتَ قَالَ اَبُوْ بَکْرٍ
صَدَقَ عُثْمَانُ قَدْ شَغَلَكَ عَنْ
ذَالِكَ اَمْرٌ فَقُلْتُ اَجَلْ قَالَ مَا هُوَ
قُلْتُ تَوَفَّی اللّٰهُ بِنَبِیِّهٖ صلعم قَبْلَ
وَلَمْ نَسْاَلْهُ مَنْ نَّجَاةَ هٰذَا الْاَمْرِ
قَالَ اَبُوْ بَکْرٍ قَدْ سَاَلْتُهٗ عَنْ ذٰلِكَ
فَقُمْتُ اِلَیْهِ وَقُلْتُ لَهٗ بِاَبِیْ اَنْتَ وَ
اُمِّیْ اَنْتَ اَحَقُّ بِهَا قَالَ اَبُوْ بَکْرٍ
قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا نَجَاةُ هٰذَا
الْاَمْرِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ
عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَبِلَ مِنِّیَ الْکَلِمَةَ
الَّتِیْ عَرَضْتُ عَلٰی عَمِّیْ فَرَدَّهَا فَهِیَ
لَهٗ نَجَاةٌ (مشکوة)

دَ عثمان رض نه روایت دے. دا وے چه دَخوږ نبی صلی الله علیه وسلم په وفات دَخوږ نبی صلعم اصحاب ډیر غمژن شو. تردے چه په وسوسو اولګیدل. عثمان رض وے چه زه هم په دے کښ وسواسی غوندے ووم. یوه ورځ زه ناست ووم چه حضرت عمر رض ځما سره تیر شه. سلام ئے اوکړو او ما ته هیڅ پته اونه لګیده. دا ابوبکر رض ته دَدے شکایت اوکړو چه ته ګوره ما ته عثمان رض دَ سلام جواب را نکړو. بیا دوی دواړه ځما سره راغله. او سلام ئے اوکړو ابوبکر ما نه تپوس اوکړو چه تا دَ عمر رور دَ سلام ځواب ولے نه دے کړے. ما وے زه خو هیڅ خبر نه یم. ما دا سے نه دی کړی. عمر رض وے چه خبره هم د قسمے ده. ما وے زه هیڅ و ستا په راتلو نه یم پوه شوے. چه ته کله راغلے ئے او نه مے دِ سلام اوریدلے دے. ابوبکر رض اووے چه دا سے به شوی وی. عثمان رض به په څه فکر کښ وو. ما وے او زه په یو لوئی فکر کښ ووم. ابوبکر رض وے په کوم فکر کښ وے ما وے خوږ نبی علیه السلام وفات شه. او موږ ترے دا تپوس اونه کړو چه دَ دے کار خلاصے به په څه کیږی. ابوبکر رض وے ما ترے دا تپوس کړیدے. عثمان رض وے زه یا سیدم او ما اووے چه ځما مور پلار درنه قربان شه ته دَ دے قابل وے چه تپوس دِ کړیدے. او دوی را ته اووے چه ما دا کلمه قبوله کړه کوم چه ما تره ابو طالب ته پیش کړیوه دَ مرګ په وخت کښ. او ده رد کړے وه. دَ غه دَ خلاصے کلمه وه.

فائده :- دا د اصحابو سوسے د غم په وجه وے. حضرت عمر رضی الله عنه غوندے بهادر هم تو ره په لاس اولاړ دے. او وائی چه که چا اووے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم مړ دے. نو څه به یئے سټ اوو هم. هغه د حضرت موسیٰ علیه السلام غوندے د خدائ ملاقات ته ورغلے دے. بعضو وے. چه څه د دین کار ختم شه. بعضی د سره کو نکیان شو. غریب او نیوه. خو یو حضرت ابوبکر رضی الله عنه وو. چه د ده حوصله بنه وه. سره د دے چه د ده عشق او محبت د هر چا نه زیات وو. ده په خطبه کښ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ آیت اولوسته. او دا یئے ثابته کړه. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خو صرف رسول وو. خدائ نه وو. چه مرګ به پرے نه راته. که دے مړ شه یا شهید شه نو تا سو به کښے د دین نه ګرځئ. که څوک اوګرځید ه نو د ځان نقصان به اوکړی. د دے کار د نجات ذریعه کلمه طیبه ده. او دا یئے ریخ دے. هر قسم مصیبتونه چه دی د دے علاج صرف کلمه طیبه ده. ځکه چه په دے اخلاص او د زړه صفائی پید اکیږی. او شیطان پرے حمله کیږی. یو حدیث دے چه په کلمے د بنده نه یو کم سل قسمه مصیبتونه او سختئ لرے کیږی چه په دے بتولو کښ کم غم دے چه هر وخت په بنده سور وی.

(۲۷) عَنْ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنِّیْ لَاَعْلَمُ کَلِمَةً لَّا تَقُوْلُهَا عَبْدٌ حَقًّا مِّنْ قَلْبِهٖ اِلَّا حُرِّمَ عَلَی النَّارِ فَقَالَ لَهٗ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اَنَا اُحَدِّثُکَ مَاهِیَ هِیَ کَلِمَةُ الْاِخْلَاصِ الَّتِیْ اَعَزَّ اللهُ تَبَارَکَ وَتَعَالٰی بِهَا مُحَمَّدًا صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَاَصْحَابَهٗ وَهِیَ کَلِمَةُ التَّقْوٰی الَّتِیْ اَرَاضَ عَلَیْهَا نَبِیُّ اللهِ صلعم عَمَّهٗ اَبَا طَالِبٍ عِنْدَ الْمَوْتِ شَهَادَةَ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ

د عثمان رضی الله عنه نه روایت دے. ده وے چه ما د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه اورید لی دی. دوی وے چه زه داسے کلمه پیژنم چه دا یه یو بنده. څه د زړه د اخلاص او نه دائی. مګر به ده به اور حرام شی پس ده عمر رضی الله عنه اووے چه حضرت ته هغه کلمه اوښایم. هغه خو د اخلاص کلمه ده. چه خدائ په دے کلمے خوږ نبی ته عزت ور کړیدے او ده د ه اصحابو ته هم. او هغه د پرهیز ګارئ کلمه ده. کومه چه نبی کریم علیه السلام خپل تره ابو طالب ته د مرګ په وخت کښ پیش کړے وه. چه هغه لا اله الا الله ده.

فائدہ:- په خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ډیر احسانات وو. ځکه دوی دا ته د مرګ په وخت کښې دا کلمه پیش کړه. چه دا ته د قیامت په ورځ د شفاعت سبب جوړه شي. او دے پرے ګواهي اوکړي. چه دا کلمه ویلے وه. تره ورته اووے چه که د خلقو د خندا نه یرېدے. چه د مرګ نه اوېرېده. نو ما به د دے کلمے په وینا ستر ګے یخے کړے وے. په دے خوږ نبي علیه السلام خفه لاړو. دا آیت چه اِنَّکَ لَاتَهْدِیْ مَنْ اَحْبَبْتَ وَلٰکِنَّ اللّٰهَ یَهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ نازل شو بېدے. د دے آیت نه معلومه شوه. چه په خپله نیکي نه کوے. او د چا خپل خپلوان د سفارش په طمع یئ. نو دا غلطه خبره ده. پکار دادي چه د دے نیکانو په ذریعه د خپلے نیکۍ لار اولټوے. نش نسب هیڅ د کار نه دے. کنی خوږ نبي صلی الله علیه وسلم به د تره نه خفه نه تلو.

(۲۸) عَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا اَذْنَبَ آدَمُ الذَّنْبَ الَّذِیْ اَذْنَبَهٗ رَفَعَ رَأْسَهٗ اِلَی السَّمَآءِ فَقَالَ اَسْئَلُكَ بِحَقِّ مُحَمَّدٍ اِلَّا غَفَرْتَ لِیْ فَاَوْحَی اللّٰهُ اِلَیْهِ مَنْ مُحَمَّدٌ فَقَالَ تَبَارَكَ اسْمُكَ لَمَّا خَلَقْتَنِیْ رَفَعْتُ رَأْسِیْ اِلٰی عَرْشِكَ فَاِذَا فِیْهِ مَكْتُوْبٌ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَعَلِمْتُ اَنَّهٗ لَیْسَ اَحَدٌ اَعْظَمُ عِنْدَكَ قَدْرًا مِّمَّنْ جَعَلْتَ اِسْمَهٗ مَعَ اِسْمِكَ فَاَوْحَی اللّٰهُ اِلَیْهِ یَآ اٰدَمُ اَنَّهٗ اٰخِرُ النَّبِیِّیْنَ مِنْ ذُرِّیَّتِكَ وَلَوْلَا هُوَ مَا خَلَقْتُكَ (طبرانی)

د عمرؓ نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه هر کله آدم علیه السلام ګناه اوکړه. کومه یئ چه اوکړه. نو دا سر پورته کړو او عرض یئ اوکړو. اے الله زه د محمد ﷺ په وسیله بخنه غواړم. ده ته وحی اوشوه. چه دا محمد ﷺ څوک دے؟ ده عرض اوکړو خدایه تا چه زه پید اکړم. نو ما په عرش دا کلمه لیکلے اولیده. چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ نو زه پوی شوم چه د ده نه لوئ څوک نشته. چه د ده نوم الله د ځان سره ایښے دے. نو وحی اوشوه. چه دا خاتم النبیین دے. او ستا په اولاد کښې دے. که دے نه وے. نو اے آدمه! ته به هم نه وے.

فائدہ:- د حضرت آدم علیه السلام نه چه کانے اوتوبے او اوښکے د ښیرا وجه نه

باندې دی. ځکه چه په ده احسان لوئ وو. چه دے خدائ د ملائکو نه هم زیات عزتمند کړه. او د ده سره د دے بیا هم کوتاهي اوکړه. د دے اندازه مونږ نه شو لګولے. خو هرڅه چه د خدائ په ده ډیر لوئ احسان وو. دومره به د هغه خفګان هم وو. ابن عباس وائي. چه که د ده د ژړا اوښکے جمع شی. نو د دنیا د خلقو د ژړا کانو نه به زیاتے شی. نو په دے باره کښ هر قسم روایات چه دی صحیح دی. ده په آخر کښ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په وسیله د بخښے سوال اوکړو.

خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وئے. چه زه جنت ته داخل شوم. نو د سرو زرو په اوبو م دا درے کرښے لیکلے اولیدے. اوله کرښه وه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ دویمه وه مَا قَدَّمْنَا وَجَدْنَا وَمَا اَكَلْنَا رَبِحْنَا وَمَا خَلَّفْنَا خَسِرْنَا. ما چه کوم خیرات اوکړو هغه م بیا موند او چه څه م اوخوړل هغه م ګټه وه. او چه کوم م پریښنو دا هغه نقصان وو. او دریمه کرښه وه. اُمَّةٌ مُّذْنِبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ. امت ګناهګار دے او رب بخونکے دے.

یو بزرګ وئیلي په هندوستان کښ یوه ونه د با دام هسې اولیده. د دے د میوے دوه پوستکي وو. دا چه مات شی په دیکښ یوه پانړه نغښتے وی چه دا پرانستے شی. نو په سوختي به د دے لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ لیکلے دی.

د غیسے دیو مهی په یو غوږ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او په دویم غوږ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ لیکلے لیدلے شوید ے.

(۲۹) عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدَ بْنِ السَّكَنِ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِسْمُ اللّٰهِ الْاَعْظَمُ فِيْ هَاتَيْنِ الْاٰيَتَيْنِ وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ. الٓمٓ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ (دارمی)

د اسماء نه چه د یزید لور وه او هغه د سکن خوئ وو. روایت دے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وئے چه د خدائ لوئ نوم په دے دواړو آیتو نو کښ دے. وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ تر آخره او الٓمٓ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ تر آخره.

فائده:۔ په اسم اعظم چه دعا او غوښتے شی. نو هغه قبلیږی. خو د خدائ

دا قانون دے. چه کوم څیز ډیر قدرمند وي. نو هغه پټ وي. لکه د لیلة القدر شپه یا د جمعې په ورځ د دعا قبلیدو وخت شه. د غسې د اسم اعظم په باره کښې هم مختلف روایات دي. دا دواړه آیتونه هم ذکر دي. او دا آیتونه په سرکشو شیطانانو ډیر سخت لګیږي. او دا د نظر او د لیونتوب په حالت کښې ابراهیم بن دسمه مفید وائي. ځکه چه دا لولي. نو د دے د لیونتوب او نظر بد نه په بچ وي. شامي د امام اعظمؒ په روایت لیکي. چه "الله" اسم اعظم دے. شیخ عبد القادر جیلانيؒ او نور صوفیان هم د دے قائل دي. خو داهل چه کوم وخت د الله لوستے شي. نو چه زړه یې د بل هر څه نه پاک وي. او دا ډیر په ویره ویره او د خدائ د یو والي د جذبے د لاندے وائي او ډیر ډیر خواص بزرګان په ورسره د خدائ د ذات او صفاتو هم پوره په زړه کښې حضور راولي. په قرآن شریف کښې "الله" دوه زره درے سوه شپیته ګڼا راغلیے.

شیخ اسماعیل فرغاني وائي چه ما د اسم اعظم د معلومولو د پاره ډیرے چلے او محنتونه کړي وو. یوه ورځ ده وے زه د دمشق د پاره په ایمانت کښې ناست وم چه دوه تنه ډیر ښائسته د ملائکو هسے ځکه په خوا کښې اودریدلا. او یو بل ته یې اووے چه ته اسم اعظم زده کول غواړے؟ ده وے "او" نو ده ورته وے چه "الله" دے کنه خو دے په داسے حالت کښې وایه. لکه یونس به دریاب کښې ورسیږي. او ځکه یې بچ کولے نه وي. نو دے چه په کوم اخلاص الله لفظ وائي. داسے د الله او وئیلے شي.

وائي چه یو بزرګ ته د اسم اعظم معلوم وو. ده ته یو فقیر راغے او ده ته یې د اسم اعظم پوښتنه اوکړه. ده ورته اووے. چه ته د دے اهل نه یې. ده وے په ما کښې اهلیت شته. بزرګ ورته اووے. چه فلانکي مقام نه لاړ شه. هلته چه څه واقعه اوشي. د هغې ما ته خبر راکړه. فقیر هلته لاړه څه ګوري یو بوډا په خره لرګي راوړه. چه یو سپاهي راغے او بوډا او واهه او لرګي یې ترے واخسته. فقیر ته په دے سپاهي غصه راغله. دے بیرته بزرګ ته راغے. او دا قصه یې ورته اوکړه. او داسے یې اووے. که ما ته اسم اعظم راتلے. نو دے سپاهي ته به مې په دے اسم اعظم د ښیرے کولے دے. بزرګ ورته اووے. چه ما خو اسم اعظم د دے لرګو د بوډا نه

زده کړېږي.

(۳۰) عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم يَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى اَخْرِجُوْا مِنَ النَّارِ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَفِيْ قَلْبِهٖ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِّنَ الْاِيْمَانِ - (حاکم)

دَ انس رض نه روایت دے. دَ وے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے چه خدائ بزرګوار به وائي. چه دَ دوزخ دَ اور نه هر هغه کس اوباسئ کوم چه کلمه دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ویلي ده. او دَ ده په زړه کښ یو ذره ایمان وو.

فائده:- دَ کلمې ډیرے بے شماره برکات دي. که دَ سلو کالو کافر چه ټول عمر یې په کفر او شرک کښ تیر شوي وي. چه یوځل اخلاصه دا کلمه او وائي نو دے مسلمان شي. او دَ ده ټول تیر ګناهونه واړه لوئ معاف شي. او چه پس دَ اسلام نه بیا ګناهونه اوکړي نو دَ دے سزا به بیا مومي. نو آخرکار بیا به جنت ته لاړ شي.

ابو حذیفه رض دَ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم دَ ډیرو درازو حادیثو نه واقف وو. وائي چه یو زمانه به داسے را اشي. چه دَ اسلام به هسے نخے قدرے پاتے شي لکه دَ جامے تیلي. چه خه نګه وي او خه شوکیدلے وي. نه به څوک روژه پیژني نه حج نه زکوٰة. تر دے چه یوه شپه به دا قرآن هم پورته کړے شي. او دَ قرآن به یو آیت پاتے نه شي. بوډاګان سړي. او ښځے به وائي چه مونږ مخکښ مخکښ خپل مشران په کلمه ویلو لیدلي وو. مونږ هم نه دا کلمه اوروو. دَ ده شاګردا او وے. چه هر کله روژه او زکوٰة نه وي. نو بیا ځو دا کلمه به څه کار اوکړي. په دے حذیفه چپ شه ده بیا بیا تپوس اوکړو. نو حذیفه ورته او وے چه په دے به دَ ډیر عذاب نه پس آخر جنت ته لاړ شي. هم دا مطلب دَ برني حدیث دے. چه یوه ذره ایمان پکښ وي. نو آخرکار به دَ دوزخ نه را او ځي. دا دے دَ کلمے برکت.

(۳۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْرَابِيٌّ عَلَيْهِ جُبَّةٌ مِّنْ طَيَالِسَةٍ مَكْفُوْفَةٌ بِالدِّيْبَاجِ فَقَالَ اِنَّ صَاحِبَكُمْ هٰذَا يُرِيْدُ يَرْفَعُ كُلَّ رَاعٍ وَيَضَعُ كُلَّ فَارِسٍ وَابْنِ فَارِسٍ

دَ عبد الله بن عمرو نه روایت دے. دَ وے چه دَ خوږ نبي صلی الله علیه وسلم سره یو بانډه چي راغے چه دَ ریښمو څنډے اغوستے وه. او دَ دے په غاړه خه تیله ختلے وه. ده اصحابو ته او وے چه ستاسو دا ملګرے (محمد ص) چه شپونکے او دَ شپونکي

فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُغْضِبًا
فَأَخَذَ بِمَجَامِعِ ثَوْبِهٖ فَاجْتَذَبَهٗ وَقَالَ
أَلَا أَرٰى عَلَيْكَ ثِيَابَ مَنْ لَّا يَعْقِلُ
ثُمَّ رَجَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم فَجَلَسَ
فَقَالَ إِنَّ نُوْحًا لَمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ
دَعَا ابْنَيْهِ فَقَالَ إِنِّيْ قَاصٌّ عَلَيْكُمَا
الْوَصِيَّةَ آمُرُكُمَا بِاثْنَيْنِ وَأَنْهَاكُمَا
مِنْ اثْنَيْنِ عَنِ الشِّرْكِ وَالْكِبْرِ وَآمُرُ
كُمَا بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ فَإِنَّ السَّمٰوٰتِ
وَالْأَرْضَ وَمَا فِيْهِمَا لَوْ وُضِعَتْ فِيْ
كِفَّةِ الْمِيْزَانِ وَوُضِعَتْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ
فِي الْكِفَّةِ الْأُخْرٰى كَانَتْ أَرْجَحَ مِنْهُمَا
وَلَوْ أَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا
فِيْهِمَا كَانَتْ حَلْقَةً فَوُضِعَتْ لَا إِلٰهَ إِلَّا
اللّٰهُ لَقَطَعَتْهُمَا وَآمُرُكُمَا بِسُبْحَانَ
اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ فَإِنَّهُمَا صَلٰوةُ كُلِّ شَيْءٍ وَ
بِهِمَا يُرْزَقُ كُلُّ شَيْءٍ. (حاكم)

ځامن لوئی کړی. اوشا هسواران او د دوی ځامن
او غوړ زوی. خوږ نبی علیه السلام په دې خفه شه
او دے یې ډکریوان نه او نیوه. او دے یې
راخکه او ده ته یې اووے. چه تا د بیو قوفانو
جامے نه دی اغستی؟ بیا بیرته شه او کیناسته
او دوی اووے چه هر کله د نوح علیه السلام وفات
نزدے شه. نو دوارو ځامن یې را او غوښته او دوی ته
یې اووے چه زه تاسو ته آخری وصیت کوم چه
د دوؤ کارونو د کولو حکم درکوم او د دوو نه منع
کوم. شرک او تکبر مه کوئ او د لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه د
حکم کوم چه دا که د ټولو اسمانونو او زمکو سره
په وزن کښ کیخودے شی. نو دوی به د دے په
درونوالی او شلیږی. او بل درته د سُبْحَانَ اللّٰهِ
وَبِحَمْدِهٖ د ویلو حکم کوم. دا د هر مخلوق مونځ دے
او د دے په برکت هر څیز ته رزق ورکیدے شی.

* * * * * *

فائده:- ظاهر د یته حال وائی. چه جامے او صفائی د بنده ښه دی. نو معلومیږی
چه د ده باطن به هم ښه وی. ځکه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د یا نبی ته د ظاهر جامے
د خراب والی په وجه بے وقوف اووے. ځکه صوفیان د ښه اودس او د پاکو جامو د
اغوستو حکم کوی. چه د باطن پاکی پرے راشی. څوک چه کیندی اغوندی او وائی چه
باطن ښه پکار دے. دوی په غلطی دی.

د خوږ نبی علیه السلام دعا ده. "اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ سَرِيْرَتِيْ خَيْرًا مِّنْ عَلَانِيَتِيْ وَاجْعَلْ
عَلَانِيَتِيْ صَالِحَةً" اے خدایه! زما باطن د ظاهر نه ښه کړے. او زما ظاهر صالح او نیک
کړے. حضرت عمرؓ وائی چه خوږ نبیﷺ ما ته دا دعا ښودلے وه.

(۳۲) عَنْ اَنَسٍ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ كَئِيْبٌ فَقَالَ
لَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ مَالِيْ اَرَاكَ كَئِيْبًا
قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كُنْتُ عِنْدَ ابْنِ عَمٍّ
لِيْ الْبَارِحَةَ فُلَانٌ وَهُوَ يَكِيْدُ بِنَفْسِهٖ
قَالَ فَهَلْ لَقَّنْتَهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ
قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَقَالَهَا
قَالَ نَعَمْ قَالَ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ قَالَ
اَبُوْ بَكْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ هِيَ لِلْاَحْيَاءِ
قَالَ هِيَ اَهْدَمُ لِذُنُوْبِهِمْ هِيَ اَهْدَمُ
لِذُنُوْبِهِمْ۔ (ابویعلی)

د انس رض نه روایت دے۔ دا وائی چه یوه ورځ
ابوبکر رض غمژن غوندې د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
سره راغے۔ نو خوږ نبی ورته اووے چه ته خو
غمژن غوندې یې ولې خیر دے؟ ده وے
تیره شپه ځما د تره ځوئ مړ شو۔ زه د ده د
ځنکدن په وخت کښ د ده سره ناست ووم۔
نو ډیر خفه شوم۔ خوږ نبی ورته اووے۔ چه
تا ورسره کلمه وئیلې ده کنه؟ ده وے ویلې مې ده۔
خوږ نبی اووے۔ چه ده هم اوویله کنه؟ ابوبکر رض
وے ده اوویله۔ نو خوږ نبی اووے۔ چه د ده د
دپاره خو جنت واجب شه۔ ابوبکر رض وے که دا
کلمه ژوندی هم اووے نو د دے به څه فائده وی۔ خوږ نبی دوه کرته
اووے۔ چه د ده ګناهونه به بالکل وران کړی۔

فائده:- په قبرونو کښ او د مرګ په خوا کښ کلمه طیبه وئیل د ډیرو احادیثو نه ثابت دی۔
یو روایت دے۔ چه د جنازے سره ډیره ډیره کلمه وایئ۔ حدیث دے۔ چه ځما امت
په پل صراط ځی۔ نو د دوی د جهنمے نخه به لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وی۔ بل حدیث دے چه
دوی د قبرونو نه راپاسی نو د دوی نخه به لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ وی۔
بل حدیث دے۔ چه د قیامت په تیرو کښ به د دوی نخه لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وی۔ او د دے
کلمے چه په ژوندون یې ډیره وظیفه کوی۔ د ځنکدن نه په سختئ کښ و اولګی۔ او څوک
یې په ژوندون او وینی۔ ابو العباس وائی۔ چه زه د اشبیلیه په ښار کښ ناجوړه پروت
ووم۔ څه ګورم چه ډیرے مختلفے سپینے، سرے، شنے مرغئ وے۔ چه په هیر به
یې وزرے راغونډے کړے او بیا به یې په هیر خورے کړے۔ او د دوی په لاسو کښ لوئ
لوئ طباخونه وو۔ چه پټ وو او په دے کښ څه پراته وو۔ زه پوئ شوم چه دا د مرګ
تحفے دی۔ نو ما د کلمه وئیل شروع کړل۔ چا راغله اووے۔ چه ستا لا د مرګ وخت
نه دے۔ دا خو د یو بل مومن تحفه ده۔ چه د مرګ وخت یې دے۔

دَ عمرؒ بن عبد العزیز چه ځنکدن شه ـ نو ده وے ماکینوئ ـ دے بیئ کینوولو ـ ده وے چه خدایه تا ما ته ډیر حکمونه کړی وو ـ او ما او نه منل ـ او زه دِ دَ ډیرو خبرو نه منع کړے وَم او ما نا فرمانی اوکړه ـ درے ګُله ئے داسے اووے ـ د دے نه پس یئے لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه اووے ـ او یو خوا ته ئے کتل شروع کړل ـ چا وے څه وینې؟ ده وے چه څه شنه ځیزونه دی ـ نه بندیان دی او نه پیریان دی ـ بیا وفات شه ـ

زبیده بی بی چه وفات شوه ـ نو چا په خوب کښ اولیده ـ وے چه څه حال دِ دے؟ دے رن ته اووے ـ چه زما بخنه دَ دے څلورو کلمو په وجه اوشوه ـ چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَفْنِیْ بِهَا عُمْرِیْ ـ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَدْخُلُ بِهَا قَبْرِیْ ـ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَخْلُوْ بِهَا وَحْدِیْ ـ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَلْقٰی بِهَا رَبِّیْ ـ "څه په لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه خپل عمر ختموم ـ او دا کلمه به دَ ځان سره قبر ته اوړم ـ او په دے به خپل یواځے وخت تیروم ـ او دا کلمه به ما سره وی او دَ خدائ سره به ملاقات کوم ـ

(۳۳) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْصِنِیْ قَالَ اِذَا عَمِلْتَ سَیِّئَةً فَاَتْبِعْهَا حَسَنَةً تَمْحُهَا قُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَمِنَ الْحَسَنَاتِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قَالَ هِیَ اَفْضَلُ الْحَسَنَاتِ (احمد)

دَ ابی ذرؓ نه روایت دے ـ ده وے چه ما خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ته اووے ـ چه ما ته څه وصیت اوکړه ـ دوی را ته اووے ـ چه کله یدی دِ ته اوشی نو دَ دے دَ لرے کولو دَ پاره څه نیک کار کوه ـ چه دا بدی پرے لرے شی ـ ما وے دا کلمه طیبه هم نیکی ده ـ نو دوی را ته اووے چه دا خو ډیره غوره نیکی ده ـ

فائده: که وړه ګناه وه نو دَ دے په نیکیٔ لرے کیدَ ه خو ظاهره خبره ده ـ او که لوئ ګناه وه ـ نو دَ قاعدے په لحاظ خو دا په توبه لرے کیږی ـ یا په فضل دَ خدائ یا دے او دَ ګناه دَ ورانیدو دا معنی ده ـ چه دا ګناه به په عملنامه کښ پاتے نه شی ـ لکه په یو حدیث کښ دی ـ چه بنده توبه اوباسی نو دا ګناه دَ کرام الکاتبین نه هیره کړے شی دَ غښے دَ لاسو خپو نه هیره شی ـ او دَ هغے زمکے نه هم هیره کړے شی ـ په کوم چه ګناه شوے وی ـ نو دا دَ قیامت په ورځ ګواهان به دَ دے ګواهی نه شی کولے ـ

توبه دے ته وائی ـ چه په تیره ګناه شرمنده شی ـ او دَ راتلونکی وخت دَ پاره پخه فیصله اوکړی ـ چه بیا به دا ګناه نه کوم ـ حدیث دے ـ چه عبادت دِ یکی بیو

خدائی کوه. شریک ورله مه منه. او په داسې اخلاص عمل کوه. لکه چه ته مرې او خدائ وینې. او په مختلفو ځایو نوکښ عبادت کوه. چه گواهان دِ ډیر وی. که بدی دِ پټه کړې وی. نو نیکی هم پټه اوکړه. او که دا دِ ښکاره کړې وی نو نیکی هم ښکاره اوکړه.

(۳۴) عَنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاحِدًا اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَتَّخِذْ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ عَشْرَ مَرَّاتٍ كُتِبَتْ لَهٗ اَرْبَعُوْنَ اَلْفَ حَسَنَةٍ. (احمد)

دَ تمیم داری نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه چا لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه تر آخره لس کښ اړ اووے. نو دَ ده دَ پاره به دَ څلویښتو زرو نیکو لیکل اوشی.

فائده:- په روایاتو کښ دَ کلمې مختلفې ښیرې راغلی دی. لکه یو حدیث دے چه چا دَ فرض مونځ نه روستو لس کرته لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ تر آخره اووے. نو دَ یو غلام دَ آزادولو ثواب به یې اوشی.

(۳۵) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ اَلْفَ حَسَنَةٍ (طبرانی)

دَ عبد الله بن ابی اوفیٰ رضی الله تعالیٰ عنه نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه چا دا کلمه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه تر آخره اووے. نو دَ ده دَ پاره به دَ شلو لکهو نیکو ثواب اولیکلے شی.

فائده:- دَ الله څومره بے حده احسان دے. چه دَ یو څو کلمو په ویلو چه په دے کښ هیڅ تکلیف نشته. په زرگونو لکهو نو ثوابونه ورکوی. خو مونږ دَ دنیا دا رسول دَ شوقیانو یو. چه دَ دے طرف ته دَ سره فکر نه کوو دَ الله دَ طرف نه باران وریږی او مونږ نوے هیڅ اخلو. څومره څومره چه اخلاص ډیر وی دومره دومره ثوابونه زیاتی وی. دَ هرے نیکئ دَ لس چنده نه واخله تر اوو سوو پورې او لا چه یو خدائی نیات دَ رکول او غواړی. ثوابونه ورکوی. او دَ هرے بدئ یو لا بدله ده. او نه او که معاف کړلا نو دَ لیکلو نه هم لرے شی. دَ نیکئ په اراده یو ثواب دے او چه عمل یې اوکړی نو لس دی. تر اوو سوو پورې او لا چه نور خدائی او غواړی. خلاصه دا ده.

چه د خدائ په ورکړ وګيتي کي نشته. خو چه اغستونکي وي هله. هم په دغه خبره نيکان يقين لري. حکه دوي د دنيا په شغلونو ثواب نه پريږدي. اللهم اجعلنا منهم.

خو رنبي صلى الله عليه وسلم وي. چه عملونه شپږ قسمه دي. او د بني آدم څلور طريقي دي. دوه عملونه واجب کونکي دي. او دوه برابر په برابر دي. او يو لس برخي او يو اووه سوه برخي دي. اول واجب دا دي. چه بنده شرک نه کوي. او مړ شي نو دي ضرور جنت ته داخل شي. او چه د شرک په حالت کښي مړ شي نو دي به ضرور دوزخ ته داخل شي. او دوه برابر په برابر دا دي. چه د نيکئ اراده ئي يي اوکړي. او عمل او نه کړي. او لس برخي دا دي. چه د نيکئ عمل اوکړي. او د الله په لار کښي لکه جهاد لګښت اوکړي. نو بدل يي يو په لس دي. او څلور قسمه بني آدم دا دي. چه په دنيا کښي په فراخئ وي. او په آخرت کښي په تنګئ وي. دويم په دنيا کښي په تنګئ او په آخرت کښي په فراخئ دريم چه دواړه ځايه تنګي وي چه په دنيا کښي فقير او په آخرت کښي په عذاب وي. او څلورم چه په دواړه ځايه کښي په فراخئ وي.

يو کس د ابو هريرة رضي الله عنه سره راغي او ده ته يي اووي. چه ته وايي چه خدائ به د بعضو نيکو ثواب لس لکهه برخي ورکوي. ده وي په دي کښي حيرانتيا وي ده. خدائ کو ما هم د غسي اورېدلي دي. په دي حديث کښي شل لکهه برخي راغلي دي. او دا حکه چه خدائ وائي يضاعفها ويؤت من لدنه اجرا عظيما. د ده عذاب بوره کوي. او د خپل ځان نه ورته ډير ورکوي. نو چه خدائ ورته اجر عظيم اووائي. د دي مقدار اندازه څوک لګولي شي. امام غزالي وائي. چه دا دومره لوئ اجر په هغه وخت چه د دي لفظونو د معنى لحاظ کوي. چه دا د الله لوئ صفات دي.

(٣٦) عن عمر بن الخطاب عن النبي صلعم قال ما من احد يتوضأ فيبلغ الوضوء ثم يقول اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريك له واشهد ان محمدا عبده ورسوله الا فتحت له ابواب الجنة الثمانية يدخل من ايها شاء.

د عمر د خطاب د خوئ نه روايت دي. ده وي. چه حضور نبي صلى الله عليه وسلم وي چه څوک بنه کامل اودس اوکړي. او د سنتو اداب يي پوره کړي بيا اشهد ان لا اله الا الله تر آخره اووائي. نو د ده د پاره د جنت اته واړه دروازي لري شي په هره دروازه چه داخليدل غواړي.

فائدہ:۔ جنت ته د داخلې د پاره خویوه دروازه هم لرے کافی ده۔ داخو د ده د عزت د پاره ده چه ده له اته دروازه لرے شوے۔ د غسے یو حدیث کښ دی۔ چه بنده نبے د شرک نه مړ شی۔ نو دے د جنت په هره دروازه چه غواړی داخلیدے شی۔

(۳۷) عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِیِّ صلعم قَالَ لَیْسَ مِنْ عَبْدٍ یَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مِائَةَ مَرَّةٍ اِلَّا بَعَثَهُ اللّٰهُ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ وَوَجْهُهٗ کَالْقَمَرِ لَیْلَةَ الْبَدْرِ وَلَمْ یُرْفَعْ لِاَحَدٍ یَوْمَئِذٍ عَمَلٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمَلِهٖ اِلَّا مَنْ قَالَ مِثْلَ قَوْلِهٖ اَوْ زَادَ۔ (طبرانی)

ابو درداءؓ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی۔ چه خوږ نبی علیه السلام وے چه څوک سل کرته لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اووائی۔ نو د ده مخ به د قیامت په ورځ د څوارلسمې سپوږمۍ غوندې بریښنا کوی۔ او په کومه ورځ چه دا تسبیح وائی په دے ورځ به د ده د عمل غوندې د بل چا عمل نه وی خو چه ده هومره یا د ده نه زیاتے کلمے ویلے وی۔

فائدہ:۔ د روایاتو نه معلومیږی۔ چه د دے کلمے د پاره رنړا ده او د مخ د پاره هم رنړا ده۔ او کومو بزرګانو چه د دے کلمے وظیفه کړیده۔ د هغوی د مخ نه رنړا څیږی۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی۔ چه مړی ته خبرے زده کوئ۔ نو کلمه ورته ښیئ او چه څوک مری نو کلمه ورته اووروئ۔ څوک چه په اول او آخر کښ دا هم اووائی۔ نو که زر کاله ژوندے وی۔ ده ته ګناه ضرور نه رسوی۔ (انشاء الله) یا خو څکه چه ده ګناه ته ده کړے۔ یا که ګناه یے کړیده نو توبه یے اوخیکلے ده۔ یا الله به خپل فضل معاف کړیدے۔ "تلقین" دے ته وائی۔ چه د مړی په خوا کښ کلمه وائی۔ چه ته هم اووایه دے په سختی کښ دے۔ که دا کلمه و ئیل د ده په دے وخت کښ نصیب شو نو د ده ګناهونه به د ده نه معاف شی۔ منافق په دے وخت کښ دا کلمه نه شی وئیلے۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی۔ چه خپلو مړو ته د کلمے تو سنه ورکوئ۔ څوک چه خپل مړی ته د کلمے وئیل اوښئ۔ نو د ده نه حساب معاف شه

حدیث دے۔ چه څوک په باقاعدګئ سره مونځ کوی۔ نو د مرګ په وخت کښ به د ده سره یوه فرښته راشی۔ چه د ده نه شیطان لرے کوی۔ او ده ته به کلمے وینا کوی۔ دا د تجربے نه ثابته ده۔ چه څوک په ژوند ون باندے کلمه ډیره ډیره وائی۔ نو ده ته به د مرګ په وخت کښ کلمه فائده ورکوی۔ ولے که هر وخت یو شی خرڅوی۔

او کلمه د سره نه وائي. نو هغه ته کلمه فائده نه رسوی. دے خو به وائي چه بوس پیدونکا روښي دی. دا سے دیر گناهونه دی. چه هغه د آخر وخت کښ د کلمے ویلو نه بنده محرومه وی. بلکه د انبیمو په ادیا نقصا نو نو کښ یو دا سے. چه د آخر دا کلمه ویل به نه شی کولے. ورنه په هیره شی. او د مسواک په ادیا فائدو کښ یو فائده دا ده. چه د مرګ په وخت کښ په ورته کلمه یاده وی. یو ځوان و چه هغه ته به د نزکدن په وخت کښ کلمه و یلے شوه. نو ده وے چه ځما د ژبے نه کلمه او ځی چا وے دا ؤ لے؟ ده وے مایه په تول کښ بے احتیاطی کوله. بل کس وے زه کلمه نه شم ویلے. چا وئه وے ولے؟ ده وے ځما سخه بوه ښځه د لوئے اخستو د پاره راغله نو ځما په سترګو دا ښه اولګیده. بنده ته پکار دی چه توبه او باسی او د خدائی پاک نه د توفیق غواړی.

(۳۹) عَنْ اُمِّ هَانِیٍٔ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ لَا یَسْبِقُهَا عَمَلٌ وَ لَا تَتْرُکُ ذَنْبًا. (ابن ماجه)

د ام هانیٔ نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه د لا اله الا الله نه نه څه عمل زیاتیدے شی. او نه دا څه ګناه پریږدی.

**فائده**:- واقعی بے کلمے خو هیڅ قبول نه دی. نو د دے نه به څه رنګ زیات شی. مونږ "روژه" ټول ایمان ته متاز دی. چه ایمان وی نو دا اعمال قبلیږی کنی نه. او کلمه چه بذات خود ایمان دے. دا هیڅ ته محتاجه نه ده. او کلمه چه و سره وی. نو که نور اعمال یے او نکړه آخر کار به جنت ته داخل شی. او چه ایمان یے نه وی نو دده هیڅ عمل قبول نه وی. او د ګناه د نه پاتے کیدو دا معنی ده. چه مثلاً که یو کفر کلمه او وے. او مرشه هیڅ عمل یے د اُنه کړے شه. نو د کفر ټول ګناهونه یے معاف شو. او چه څوک دا کلمه وائی نو د ده زړه دا سے صفا شی چه ګناه که او کړی شو مونږ توبه او باسی. او ګناه یے اوځی. څوک چه دا او ده کیدو او دیکیدو په وخت کښ خامخا کلمه وائی. نو د سے په دنیا کښ د آخرت د تیاری طرف نه توجه کوی. او دا کلمه بے دے د مصیبت نه بچ کوی.

(۴۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَلْاِیْمَانُ بِضْعٌ

د ابو هریرهؓ نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه د ایمان څه د پاسه

وَسَبْعُوْنَ شُعْبَةً فَاَفْضَلُهَا قَوْلُ
لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَدْنَاهَا اِمَاطَةُ
الْاَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ
مِّنَ الْاِيْمَانِ (رواه الستة)

اویا څانګې دي. او د ټولو نه غوره یکښې کلمه ده. او کمه حصه ئې د تکلیف ورکونکي څیز لرې کول دي. او حیاء د ایمان یوه څانګه ده — ا

فائده:- حیاء د ډیرو ګناهونو نه د بچ کیدو ذریعه ده. لکه زنا، غلا، بدزباني بربنډه ګرځیده، کنځل شو. او د بې عزتۍ نه د بچ کیدو د پاره ډیرې نیکۍ بندوي. ځکه چه یو مثال دے "ځان بے حیا کړه نو بیا هرڅه کوه". خبره ټوله د شرم او د غیرت ده. چه حیاء وي نو د ده سره به دا خیال وي چه که موږ اونه کړم نو به آخرت کښې به مې څه حال وي. د ایمان په باره کښې د اویا څانګو او د اوه اویا څانګو شمیره راغلیده. او په دے سلسله کښې د قرآن او د حدیث نه علماؤ دغه شماره کړے ده. او په دے ډیر کتابونه لیکلي شوي دي. چه په هغې کښې د بخاري شرحه کونکو د مختلفو کتابونو نه د دے خلاصه جمع کړیده. چه د هغې حاصل دا دے. چه

کامل ایمان د درې څیزونو نوم دے. اول د زړه تصدیق، دویم د ژبې اقرار، دریم د نورو وجود عملونه. نو د ایمان ټول څیزونه په دے دریواړو کښې داخل دي. د زړه د اعتقاد سره تعلق لرونکي عقائد دیرش دي.

(۱) د الله په ذات او صفاتو او د خدائ په یو والي یقین کول. او دے د شریک او مثل نه پاک ګڼل. (۲) د خدائ نه علاوه ټول څیزونه روستو پیدا شوي دي. د همیشه نه صرف یو الله دے. (۳) په فرښتو ایمان راوړل. (۴) د خدائ په اسماني کتابونو ایمان راوړل. (۵) د الله په رسولانو ایمان راوړل. (۶) د خدائ د طرف نه ښه او بد مقدر منل. (۷) د قیامت په حق والي ایمان راوړل. چه په هغې کښې د قبر سوال وجواب د قبر عذاب، د مرګ نه پس ژوندون، حساب او کتاب. د عملونو تلل. په پل صراط تیریدل ټول داخل دي. (۸) په جنت یقین کول. او د مسلمانانو په دیکښې همیشه اوسیدل هم منل. (۹) د دوزخ عذابونه او د دوزخ همیشه پاتې کیدل. (۱۰) د الله سره محبت کول. (۱۱) د الله د پاره د نیکانو او د نیکۍ سره محبت. د بدانو او د بدۍ سره د خدائ د پاره بغض ساتل د اصحابو

سره خصوصاً دَ مهاجرینو او انصارو سره او دَ آلِ رسول سره محبت کول. (۱۲) دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم سره محبت کول او دَ دوی ادب کول په خوږ نبی علیه السلام درود وئیل. او دَ دوی دَ سنتو تابعداری پکښې هم داخله ده. (۱۳) اخلاص چه دَ ریا او نفاق نه بچ وی. (۱۴) توبه په تیرو گناهونو ستو مانتیا او دَ مخکښې دَ پاره دَ نه کولو پوخ لوظ. (۱۵) دَ الله ویره. (۱۶) دَ الله دَ رحم امید لرل. (۱۷) دَ خدائ نه نه نا امید کیدل. (۱۸) شکر ویستل. (۱۹) وفا (۲۰) صبر (۲۱) عاجزی چه په دیکښې دَ مشرانو ادب هم دے. (۲۲) شفقت چه په هغې کښې په ورو رحم هم شامل دے. (۲۳) په مقدر رضا او سیدل. (۲۴) توکل (۲۵) دَ ځان تعریف پریښودل او دَ ځان اصلاح (۲۶) کینه او حسد نه ساتل (۲۷) عینی دا پریښے دے مولانا وائی چه دا به حیا وی چه کا شے پریښے دے. (۲۸) قار نه کول. (۲۹) دهوکه نه کول. چه بدگمانی پکښې داخله ده. مکر نه کول (۳۰) دَ دنیا محبت نه کول دَ عزتونو دَ پاره کوششونه هم په دیکښې شامل دی دانه کول. علامه عینی وائی چه په دیکښې ټول دَ زړه عملو نه راغله. بعض عمل په ظاهر کښې بارائی وی خو هغه دَ زړه وی.

دویم قسم دَ ژبے عملونه دی. دَ دے اووه څانگے دی. (۱) دَ کلمے طیبے وینا. (۲) دَ قرآن پاک تلاوت (۳) دَ علم زده کړه (۴) علم نورو ته ښودل. (۵) دعا کول. (۶) دَ الله ذکر چه استغفار پکښې هم دے. (۷) بے فائدے خبرے نه کول.

دریم قسم اعمالِ دَ باقی وجود دی. دا شلو یښت دی. دَ دے درے حصے دی اول دَ خپل ذات سره تعلق لری. دَ دے شپاړس څانگے دی. (۱) دَ وجود دجامو دَ مکان پاکی. اودس او دَ حیض نه پاکی. دَ لویځ بے اودسئ نه لامبل پکښې هم شامل دی. (۲) باقاعده مونځ کول. فرض. نفل. قضا (۳) زکوٰة. سرسایے ورکول میلمنو ته خوراک ورکول دَ غلامانو آزادول (۴) فرض نفل روژے نیول (۵) فرض او نفل حج کول، عمره او طواف پکښې هم داخل دی. (۶) اعتکاف دَ لیلة القدر تلاش (۷) دَ دین دَ حفاظت دَ پاره کور پریخودل. هجرت. (۸) منتے پوره کول (۹) دَ قسمونو حفاظت کول. (۱۰) کفارے ورکول. (۱۱) دَ پردے اندامونه پټ ساتل. (۱۲) قربانی. او دَ قربانئ دَ ځناورو حفاظت کول. (۱۳) دَ جنازے او دَ دے دَ ضرورتیا تو انتظام

کول۔ (۱۴) قرض ادا کول۔ (۱۵) صحیح معامله کول۔ د سود نه ځان بچ کیدل۔ (۱۶) د ښتیا گواهی کول۔ او حقه خبره نه پټول۔

دویم حصه د نورو خلقو سره د معاملې ده۔ د دې شپږ ځانگې دی۔ (۱) د نکاح په ذریعه د بد لمنئ نه بچ کیدل۔ (۲) د بال بچ حقونه اداکول نوکران خادمان پکښې هم داخل دی۔ (۳) د مور پلار سره ښه سلوک او نرمی کول او تابعداری۔ (۴) د اولاد ښه پرورش کول (۵) د خپلوانو سره خپلولی کول۔ (۶) د مشرانو ادب او د دوی تابعداری کول۔

دریمه حصه۔ د عوامو د حقونو خیال ساتل دی۔ او د دې اتلس ځانگې دی۔ (۱) په انصاف حکومت کول (۲) د حق جماعت مرکز تیا کول۔ (۳) د حاکمانو شرعی حکم منل (۴) د معاملاتو اصلاح کول فسادیانو ته سزا او د دوی سره جهاد کول (۵) په نیک کارکښې مدت کول (۶) د نیکئ حکم کول او د بدئ نه منع کول چه په دیکښې تبلیغ او وعظ داخل دے۔ (۷) حدونه قائمول (۸) جهاد کول، او د مورچو حفاظت کول (۹) امانت اداکول چه د خمس او د غنیمت مال پکښې هم دے۔ (۱۰) قرض ورکول او ادا کول (۱۱) د گاونډیانو حق اداکول او د دوی عزت کول (۱۲) معامله ښه کول او حلال مال جمع کول (۱۳) مال په ښه ځائے کښې لگول د اسراف او د بخیلئ نه بچ کیدل هم پکښې دی۔ (۱۴) سلام کول او د سلام جواب ورکول (۱۵) د پرنجی خاوند ته یرحمک الله ویل (۱۶) دنیا د خپل تکلیف نه بچ کول (۱۷) د لوبو نه بچ کیدل (۱۸) د لارے نه د ازغی وغیره لرے کول۔

دا اووه اویا ځانگے دی۔ په دیکښې چه یو په بل کښې داخل شی۔ نو اویا ترے جوړیږے شی۔ لکه چه په بل حدیث کښې راغلی دی د علامه عینی چه د بخاری شرح ده ما دا خوښه کړه۔ او د دے نه م دا تفصیل اولیکه۔

په چا کښې چه دا نشوی یا لږ ے خبرے وی د دے د شکر یه اداکړی او چه کومے نه وی د دے د حصول د الله نه توفیق او غواړی۔ او د دے د پاره د کوشش اوکړی۔

وَمَا تَوْفِيْقِىْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ط

# دریم باب

## دَ دریمے کلمے فضائل

هغه دریمه کلمه داده سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ دَ دے سره په بعضو روایاتو کښ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ هم راغلے دے. دیته تسبیحات فاطمه هم وائي. ځکه چه دا کلمے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم خوږ دے لور فاطمے بی بی رضی الله عنها ته ښودلے وے. دَ دے کلمے په باره کښ آیتونه او احادیث راغلی دی. ځکه زه په اول فصل کښ آیتونه لیکم. او په دویم کښ به احادیث لیکم.

## رومبے فصل

کوم خیز چه ډیر قدرمن وی دومره دَ دے ذکر ډیر کیږی. ځکه په قرآن شریف کښ دَ دے کلمو ذکر په مختلفو طریقو سره شوید ے. په دیکښ اوله کلمه سبحان الله ده. چه دا الله دَ هر قسم عیبونو نه پاک دے. زه دَ دے اقرار کوم په قرآن کښ دا کلمه دَ حکم په رنګ کښ لکه سَبِّحْ او دَ خبر په رنګ کښ لکه يُسَبِّحُ بیان شوے ده. د عیسے دَ دے کلمے دانور جزونه هم په مختلفو طریقو بیان شوی دی.

(۱) وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ (بقره ۴ع)
او مونږ ستا ستا تعریف او تسبیح وایو.

(۲) قَالُوا سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ (بقره ۴ع)
او وے ملائکو چه مونږ خو ستا پاکی وایو مونږ دغه قدرے علم وے چه تا را ته ښودلے دے بے شکه ته عالم او دَ حکمت خاوند یے.

(۳) وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ (آلِ عمران ۴ع)
او خپل رب ډیر یاده وه. او تسبیح وایه. په زوال او سحر کښ.

(۴) رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ (آلِ عمران ۲۰ع)
تا دا هرڅه بے فائدے نه دی پیدا کړی ستا ذات پاکی ده پس ته مونږ دَ عذاب نه اوساتے.

(۵) سُبْحَانَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ (نساء ۲۳ع)
پاک دے خدائ دَ دے نه چه دَ هغه اولاد دی.

(۶) قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُوْنُ لِيْ اَنْ اَقُوْلَ مَا لَيْسَ لِيْ بِحَقٍّ (مائدہ ع ۱۶)

او وے عیسیٰؑ چہ ما تہ کلہ دا سے ناحق وینا ښکاره وه تہ خو د دے خدایانو نہ پاک یئے۔

(۷) سُبْحَانَهٗ وَ تَعَالٰى عَمَّا يَصِفُوْنَ (انعام ع ۱۳)

اللّٰہ د کافرانو د هغه صفاتونه پاک دے کوم چہ یہ خدائی پورے تړی۔

(۸) فَلَمَّا اَفَاقَ قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ (اعراف ع ۱۷)

پس هر کله چہ موسیٰ په هوش شه۔ نو وے ویل ته یئے د ستر گو د لیدو نه پاک یئے زه د خپل سوال نه توبه اوباسم او زه اول مؤمن یم۔

(۹) اِنَّ الَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَ يُسَبِّحُوْنَهٗ وَ لَهٗ يَسْجُدُوْنَ (اعراف ع ۲۴)

بے شکہ ملائکے د خدائی د عبادت نه ځان لوئی نه گنړی او د ده پاکی بیانوی او ده ته سجده کوی۔

فائدہ:۔ دلته یئے تکبر مخکښې ذکر کړو۔ صوفیان وائی چہ تکبر نه وی نو هله عبادت کیدے شی متکبر عبادت نه کوی۔

(۱۰) سُبْحَانَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (توبہ ع ۵)

اللّٰہ د هغه شریکانو نه پاک دے کوم چہ کافران د هغه شریکوی

(۱۱) دَعْوٰهُمْ فِيْهَا سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ تَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلَامٌ ۚ وَ اٰخِرُ دَعْوٰهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ (یونس ع ۱)

د دے جنتیانو د خولے نه به سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ او ویل شی سلام او چہ د دنیا وختونه یاد کړی چہ سختئی وے نو به وے الْحَمْدُ لِلّٰهِ او وائی۔ هغه ذات لوئی دے او د شریک نه پاک دے۔

(۱۲) سُبْحَانَهٗ وَ تَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (یونس ع ۲)

هغه ذات پاک او لوئی دے د هغه شریکانو نه چہ دوی یئے ور پورے تړی۔

(۱۳) قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحَانَهٗ هُوَ الْغَنِيُّ (یونس ع ۷)

دوی وائی چہ خدائی حوئے نیولے دے۔ هغه پاک او لوئی دے د کہ نه هغه خو چا ته محتاج نه دے۔

(۱۴) وَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَ مَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ (یوسف ع ۱۲)

او اللّٰہ د هر عیب نه پاک دے۔ او زه د مشرکانو نه نه یم۔

(۱۵) وَ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيْفَتِهٖ (رعد ع ۲)

او رعد فرښته د اللّٰہ تعریف کوی او تسبیح کوی۔ او نورے فرښتے هم د ویرے د اسے وائی۔

فائدہ:۔ علما وائی چہ د اسمان د بریښنا په وخت کښې دا آیت ویل پکار دی چہ د آسمانی آفت د نقصان نه بچ شی۔ وائی چہ په دے وخت کښې تسبیح ویل پکار دی تکبیر د نه وائی۔

(١٦) وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ
بِمَا يَقُولُونَ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ
وَكُنْ مِّنَ السَّاجِدِيْنَ وَاعْبُدْ رَبَّكَ
حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ (حجر ع ٦)

موږ خبر يو چه ستا سينه د دوی د نا کاره خبرو
نه تنګيږی. خو ته دا مه کوه تسبيح او تحميد وايه
او ځان د سجده کوونکو سره کړه. او د خپل رب
عبادت کوه تر مرګه پورې.

(١٧) سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (نحل ع ١)

الله پاک دی او پورته دی د هغه معبودانو نه چه دوی
یې ور سره شريکوی.

(١٨) وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهٗ وَ
لَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ (نحل ع ٦)

او دوی د خدای لونړه منی هغه د دې نه پاک دی.
او عجيبه ده چه دوی د ځان د پاره د خوښې ځامن نيسی

(١٩) سُبْحَانَ الَّذِيْ أَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ
الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصٰى (بنی اسرائيل ع ١)

الله د هر عيب نه پاک دی چه خپل بنده محمد ﷺ ي د شپې د
کعبې نه بيت المقدس ته بوتلو. (د معراج قصه)

(٢٠) سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا
كَبِيْرًا (بنی اسرائيل ع ۵)

د کافران چه څه وائي الله د دې نه ډير
لوی او اوچت دی.

(٢١) يُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ السَّبْعُ وَالْأَرْضُ
وَمَنْ فِيْهِنَّ (بنی اسرائيل ع ۵)

د الله د پاره اووه واړه اسمانونه او زمکه او هر
څه چه په دې کښې دی خدای د هر عيب نه پاک منی.

(٢٢) وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ
وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ (بنی اسرائيل ع ۵)

او هيڅ داسې شے نشته چه هغه د خدای تسبيح او تحميد
نه وائي خو تاسو د دوی په تسبيح نه پوهيږئ.

(٢٣) خوږه نبی! ته دوی ته د دې مطلب خبرو په جواب کښې او وايه چه پاکي ده خدای له
زه خو يو بنی آدم رسول يم. چه زه غواړم هغه او کړم (بنی اسرائيل ع ١٠)

(٢٤) په دې علماؤ چه د قرآن آيتونه اولوستې شی. نو دوی په زنو پريوځی. او سجده
او کړی. او وائي چه زموږ رب پاک دی. بے شکه هغه وعده ضرور
د پوره کيدو ده. (بنی اسرائيل ع ١٢)

(٢٥) پس زکريا د حجرې نه باهر راووت او خپل قوم ته يې په اشاره اووے. چه
تاسو سحر ماښام تسبيح وايئ. (مريم ع ١)

(٢٦) خوږه نبی! ته د دوی په نا مناسب خبرو صبر کوه. او خپل حمد سره او تسبيح
وايه. د نمر ختو نه مخکښې او د نمر د پريوتو نه مخکښې او د شپې په اوقاتو کښې او د ورځې

په اول آخر کښې چه ته د دے په سپے حده ثوابونو خوشحاله شې. (طٰه ع)

(۲۸) د الله مقبول بندګان د ده په عبادت نه ستړی کیږی. شپه او ورځ تسبیح وائی. هیڅ وخت دمه نه کوی.

(۲۹) الله چه د عرش مالک دے. د دے ټولو خیرونه پاک دے. کوم چه دوی بیانوی. چه د ده شریک یا اولاد دے. (انبیاء ع)

(۳۰) دا کافران وائی. چه نعوذبالله رحمٰن فرښتو لره اولاد نیولے دے (انبیاء ع)

(۳۱) مونږ غرونه د داؤد تابعدار کړل. چه دوی هم د ده سره تسبیح وائی د غښے مرغئی هم وائی. (انبیاء ع)

(۳۲) یونس په تیرو کښې چغه کړه چه بے د خدائی نه بل معبود نشته. ته د ټولو عیبونو نه پاک یې زه قصور واریم. (انبیاء ع)

(۳۳) الله د دے ټولو عیبونو نه پاک دے. دا کوم چه کافران وائی. (مومنون ع)

(۳۴) پاکی د خدائی لره دا خلق چه کوم تهمت په عائشه لګوی دا لویه دروغ تړنه ده نور ع (۳۵) په دے جماتونو کښې خلق سحر او مانیام تسبیح وائی. دوی د الله د یاد نه، د مونځ نه، د زکوٰة نه خرید و فروخت نشی منع کولے دوی د هغه ورځ نه یریږی چه په هغې کښې زړونه او سترګے واوړی چه قیامت دے (نور ع)

(۳۶) اے مخاطبه ته دا نه وینې چه د اسمانونو او زمکے ټول خیزونه مرغئی چه وزرونه غوړه وی اورا غونډ وی. ټولو ته د خپل مونځ او تسبیح طریقه معلومه ده. او خدائی ته هرڅه معلوم دی نور ع

(۳۷) په قیامت کښې په خدائی د معبودانو نه تپوس اوکړی چه دا خلق تاسو ګمراه کړے وو؟ دوی به وائی سبحان الله زمونږ څه طاقت وو چه مونږ به ستا نه سوا بل څوک کارساز کړلو. دوی خو په خپله د کفر په کیره کښې راغله دوی ته او د دوی پلارانو ته تا مال دولت ورکړے وو څکه. (فرقان ع)

(۳۸) او په هغه خدائی توکل اوکړه. چه همیشه ژوندے دے. نه فنا کیږی او د ده ثنا او تسبیح وایه څکه چه هغه د بندګانو د ګناهونو نه خبردار دے په قیامت کښې به بله له ورکوی. (فرقان ع)

(۳۹) الله دَهر قسم عیب نه پاک دے. (نمل ع)

(۴۰) الله دَهغه ټولو څیزونو نه پاک دے. کوم چه دا مشرکان بیانوی. او دَ دے نه پورته دے (قصص ع)

د غه قسم ډیر آیتونه دی چه په دیکښ دَ تسبیح او دَ خدائ دَ پاکئ بیان دے او په دے اقرار دے یا دَ دے ترغیب دے. په کوم مضمون چه الله پاک دومره زور لګوی. چه بار بار یئے بیانوی. نو دَ دے دَ لوئ والی نه څوک انکار کولے شی؟ دَ تسبیح سره دَ تحمید لفظ هم دے. او تحمید خو خدائ ته دومره محبوب دے. چه دَ قرآن شروع په الحمد لله شوے ده.

(۱) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ (فاتحه ع)
ټول تعریفونه خدائ لره دی چه رب دَ ټولو عالمو دے.

(۲) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ (انعام ع)
ټول تعریفونه هغه خدائ لره دی. چه اسمانونه زمکه یئے پیدا کړی دی.

(۳) فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ (انعام ع۵)
پس جړه او بیخ شوه دَ ظالمانو او ټول تعریفونه دَ الله دی چه رب دَ ټولو عالمو دے.

(۴) وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هَدٰانَا لِهٰذَا (اعراف ع۵)
او جنتیان به او وائی چه شکر دے هغه خدائ لره چه مونږ ته یئے دَ دے جنت هدایت اوکړو

(۵) اَلَّذِیْنَ یَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِیَّ الْاُمِّیَّ الَّذِیْ یَجِدُوْنَهٗ فِی التَّوْرٰاةِ وَالْاِنْجِیْلِ (اعراف ع۱۹)
هغه کسان چه دَ امی نبی او رسول تابعداری کوی. کوم چه په تورات کښ د دوی سره لیکلے شوے دے.

فائده: په تورات کښ دَ دَه دَ امت صفت دا دے چه دوئ به ډیر حمدونه وائی

(۶) اَلتَّائِبُوْنَ الْعَابِدُوْنَ الْحَامِدُوْنَ (توبه ع۱۴)
دَ مجاهدینو عملونه به توبې او څکه عبادتونه کول او دَ خدائ ثنا کانے ویل وی.

(۷) وَ اٰخِرُ دَعْوٰهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ (یونس ع۱)
دَ دوی آخری چغه به دا وی. چه ټول تعریفونه هغه خدائ لره وی. چه رب دَ ټولو عالمو دے.

(۸) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ وَهَبَ لِیْ عَلَی الْکِبَرِ اِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ (ابراهیم ع)
تعریفونه دی هغه خدائ لره چه ماته یئے په بوډا والی کښ اسماعیل او اسحاق راکړو.

(۹) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ بَلْ اَکْثَرُهُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ نحل ۷۵

ټول تعریفونه خدائ لره دی بلکه اکثره دوی نه پوهیږی.

(۱۰) وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ اِلَّآ اَنْ یُّؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ الْعَزِیْزِ الْحَمِیْدِ الَّذِیْ لَهٗ مُلْکُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (بروج ۹)

او دوی په مسلمانانو کښ صرف دا عیب بیاموندلو چه دوی په الله غالب ستائیلی شوی باچا دآسمانونو او زمکے ایمان راوړی. داخو عیب نه دے.

دغه قسم ډیرآیتونه دی چه په دیکښی دالله دتعریف کولو حکم یاخبر دے او په احادیثو کښ خو دحمد ډیر فضائل دی. حدیث دے چه جنت ته به هغه خلق ځی. چه په حالت دغم او دخوشحالئ دواړو کښ دخدائ حمد وئ وائی خدائ په خپل تعریف ډیرخوشحالیږی. او دے داحق هم لری. ځکه چه دے په هرڅه قادر دے. مخلوق په څه وی چه په خپله عاجزدے. حمد دشکر وړےڅکه چه چا حمد نه کوی نو شکر به څه اوکړی. حدیث دے. چه په حمدیاندے به دنعمت حفاظت اوشی. حدیث دے. چه که ټوله دنیاستاشی نو دے ټولے نه حمد بنه دے. یو صحابی اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْدًا کَثِیْرًا طَیِّبًا مُّبَارَکًا فِیْهِ پسے غونډے اووے. نوخوږ نبی صلی الله علیه وسلم اووے. چه داچا اووے؟ صحابی رض سره غم شه. خو خوږ نبی علیه السلام ورته اووے چه ددے لکه دیارلس ملائکے راغلے. چه هریوے کوشش کوو. چه دا لیکلے مخکښی یوسی. یو مشهور حدیث دے. چه کوم کار بے ثنا شروع شی. نو هغه بے برکته وی. ځکه هر کتاب په الحمد شروع کیږی. حدیث دے چه هر کله ملائکه دچا دبچی نه روح اوباسی. نوخدائ ترے سره دعلمه تپوس اوکړی. چه تاسو ځما دبنده دبچی نه روح اوبښکه؟ او دده دروح ټکره موږ اغستنه. دوی وائی چه "او" خدائ اوائی چه ده څه اووے. دوی ورته اوائی چه ثنا یئے اووے. اوانّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ یئے اووے. نو خدائ ورته اووائی چه دده دپاره په جنت کښ یوکور جوړکړئ او دده نوم بَیْتُ الْحَمْد کیږدئ. خدائ پاک په دے ډیر خوشحالیږی چه په خوراک سڅاک الحمد اووائی.

دریمه کلمه دلَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ده. او په دے خپوره بحث تیرشویدے.

څلورم دتکبیر کلمه ده. چه اَللّٰهُ اَکْبَرُ دے داهم په ډیرو آیتونوکښ راغلیدے

(۱) وَ لِتُکَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰی مَا هَدٰکُمْ وَلَعَلَّکُمْ تَشْکُرُوْنَ (بقرة ع ۲۳)

او چه د الله لوئي بیان کړي په دے خبره چه ده ورته هدایت اوکړو او چه دخدائی شکر اوباسی۔

(۲) عَالِمُ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ الْکَبِیْرُ الْمُتَعَالِ ۔ (رعد ع۲)

هغه پټ او ښکاره پیژنی د ټولو نه لوئی او عالیشان دے۔

(۳) کَذٰلِکَ سَخَّرَهَا لَکُمْ لِتُکَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰی مَا هَدٰکُمْ ۔ (حج ع۵)

د قربانئ داځناورے ستاسو تابع کړو چه تاسو دخدائی په هدایت دخدائی لوئی اووایئ۔

(۴) وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِیُّ الْکَبِیْرُ (لقمان ع۳)

بے شکه چه الله لوئ عالیشان دے۔

(۵) قَالُوا الْحَقَّ وَهُوَ الْعَلِیُّ الْکَبِیْرُ (سبا ع۳)

ملائکے د ویرے نه پس وائی چه دے حق دے۔ او د لویئ مرتبے خاوند دے۔

(۶) فَالْحُکْمُ لِلّٰهِ الْعَلِیِّ الْکَبِیْرِ (مومن ع۱)

پس حکم د الله د پاره دے۔ چه عالیشان او د لویئ مرتبے خاوند دے۔

(۷) وَلَهُ الْکِبْرِیَآءُ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ (جاثیه ع۴)

او د دے پاک ذات د پاره لوئی ده په اسمانونو او زمکه کښې او دغالب د حکمت خاوند دے

(۸) هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْمَلِکُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَیْمِنُ الْعَزِیْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَکَبِّرُ (حشر ع۳)

د الله هغه ذات دے چه بل معبود نشته۔ دے باچا، پاک، د ټولو نقصانونو نه بچ، امن ورکونکے حفاظت کونکے، زبردست، دخرابئ سمونکے د لوئی خاوند دے۔

فائده:۔ په دے آیتونو کښې د الله د لوئی ترغیب او حکم دے۔ دا قسم ډیر احادیث هم راغلی دی۔ حدیث دے چه کوم ځائی اور اولیږی۔ نو الله اکبر به دا اور مړ کړي حدیث دے چه څوک الله اکبر وائی نو ترا اسمانه ملک روښانه شی۔ دغه قسم ډیر احادیث دی۔ بعض آیتونو کښې د دے تسبیحات لفظونه نشته خو مطلب ترے دادی۔ لکه (۱) فَتَلَقّٰی اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ کَلِمٰتٍ ۔ دلته د کلمات نه مراد دغه تسبیحات دی چه هغه دادی۔ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ سُبْحٰنَکَ وَبِحَمْدِکَ رَبِّ عَمِلْتُ سُوْٓءًا وَّظَلَمْتُ نَفْسِیْ فَاغْفِرْلِیْ اِنَّکَ اَنْتَ خَیْرُ الْغَافِرِیْنَ فَارْحَمْنِیْ اِنَّکَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِیْنَ ۔ تُبْ عَلَیَّ اِنَّکَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِیْمُ۔

(۲) مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا. (انعام ع ۲۰) څوک چه د یوے نیکئ سره راشی نو لس برخے ثواب به بیا مومی۔

فائدہ:۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی چه دوه خویونه دی که مسلمان د دے انتظام اوکړی۔ نو جنت ته به داخل شی۔ او دغه دواړه ډیر معمولی دی خو په دے عمل کونکی ډیر کم دی۔ هغه سُبْحَانَ اللهِ۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ۔ اَللّٰهُ اَکْبَرُ د مانځه نه پس لس لس کرت ادا کړه ویلی دی۔ په دے حساب به د پنځه واړو مونځونو نه روستو یو نیم سو کرتے ادا شی۔ او چه لس برخے ثواب یے شی نو پنځلس سوه به شی۔ او دویم خبره داده چه د اوده کیدو په وخت کښ الله اکبر څلور دیرش کرته الحمد لله دری دیرش کرته سبحان الله دری دیرش کرته نو تسلل کیے شوے چه د دے ثواب زرنیکئ شوے۔ نو د شپے او ورځے دوه نیم زره ثوابونه شو۔ نو د اصحابو په زمانه کښ دوه نیم زره گناهونه د ورځے او د شپے خو نه کیدله۔ و لے زمونږ خو ژوند د مدونه ډک دے خو خوږ نبی علیه السلام راته د نیکو د غالب کیدو نسخه اوښوده۔ باقی عمل کول او نه کول دا زمونږ کار دے۔ چا تپوس اوکړو۔ چه خوږه نبیؐ! دا دومره اسانه کلمے ولیل کړلنے والے دی؟ دوی اوفرمائیل۔ چه د اوده کیدو په وخت کښ شیطان د دے ویلو نه مخکښ اوده کړی۔ او د مانځه نه روستو ورته داسے خبره یاده کړی۔ چه دا ترے پاتے شی۔

حدیث دے خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اووے۔ چه تا سو د دے نه عاجزه یئ چه زر نیکئ اوکټئ؟ چاوے خوږه نبی! زر نیکئ به څوک اوګټی؟ خوږ نبیؐ اووے چه سبحان الله زر کرته وائی۔ نو زر نیکئ به شی۔

(۳) اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا۔ (کہف ع۶)

مال او اولاد د ژوند د دنیا د ول قدر دے او نیکئ باقی پاتے کیدونکے خورہ دہ ستا د رب سرہ د ثواب او امید په لحاظ سره.

فائدہ:۔ په باقیات صالحات کښ ټول همیشه پاتے کیدونکی عملونه داخل دی۔ چه د دے ثواب په همیشه ورکیدے شی۔ خو د ډیر و احادیثو نه معلومیږی۔ چه په دیکښ تسبیحات هم داخل دی۔ خوږ نبیؐ یو کرت اووے۔ چه د ځان حفاظت

اوکړي۔ چاوے دَ دښمن نه! خوږ نبيؐ اوفرمائيل۔ دَ دوزخ دَ اورنه۔ او هغه سُبحان الله، الحمد لله، لَا اِلٰهَ اِلَّا الله، الله اکبر دے۔ دوي به په قيامت کښ دَ ويو نکي مخکښ ځي۔ او دَ دَه سفارش به کوي۔

(۴) لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ (زمر ع۶) دَ الله دَ پاره دي کوځي دَ اسمانونو او مزکے۔

فائده:۔ حضرت عثمانؓ دَ خوږ نبي نه دَ دے کونجو تپوس کړے۔ هغوي ورته اووے چه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاللهُ اَکْبَرُ۔ سُبْحَانَ اللهِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، اَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اَلْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لَّا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ۔ او په دويم حديث کښ دا کونجي صرف سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَللهُ اَکْبَرُ دي۔ او دا دَ عرش دَ خزانے نه نازلے شوي دي۔

(۵) اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهٗ (فاطر ع۲) دَ دَه طرف ته ښئے کلمے رسي۔ او نيک عمل دا رسوي۔

فائده:۔ چه بنده دَ ربيم کلمه اووائي۔ نو فرښتے دا په خپلو وزرو کښ بره اسمان ته اوسي۔ او دَ بره لو اسمانونو ملائکے دَ دے بنده دَ پاره بخنه غواړي او دَ دے په تائيد کښ دغه بره آيت دے۔

کعب احبار وائي چه دا کلمے دَ عرش نه چاپيره بنړيکي او دَ دَه ذکر کوي۔

## دويم فصل

په دے فصل کښ هغه احاديث ليکم۔ چه دَ دے نه دَ تسبيحاتو فضيلت او دَ دے دَ لوستو ترغيب معلوميږي۔

(۱) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَتَانِ خَفِيْفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيْلَتَانِ فِي الْمِيْزَانِ حَبِيْبَتَانِ اِلَى الرَّحْمٰنِ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ (بخاري)

ابو هريره وے۔ چه خوږ نبي صلی الله عليه وسلم وے۔ چه په دنيا کښ اسانے کلمے چه په تله کښ درنے دي او دَ خدائي پير خوږے دي هغه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ دي۔

فائده:۔ دَ تخفيف مطلب دا دے۔ چه مختصر دي وخت پرے لږ لګي يا دير ئي زر۔ او مراد دَ دے په وزن کښ درنے دي۔ او بيا چه خدائي وائي چه ډيرے خوښے دي۔ نو دَ نيک بنده به دا ولے

نه وی خو ښے. دا حدیث بخاریؒ د کتاب په آخر کښې لیکلی دے. بل حدیث دے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه زر نیکئ د هر بنده کښي. هغه داسے چه سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهٖ د سل کنداره وائی. او چه نوره نیکی ئے کړی وی نو هغه ئے سرباری وی به دے باندے د زرگ هومره گناه معاف کیږی. او د ونو د پا نړو هسے د گناهونو ډیره وی.

(۲) عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُخْبِرُكَ بِاَحَبِّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ فَقَالَ اِنَّ اَحَبَّ الْكَلَامِ اِلَى اللهِ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ.
(مسلم)

ابی ذرؓ وے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه آیا زه تاسو ته ډیر د خدائی محبوب کلام او نه ښایم؟ نو دوی او وے. چه خدائ پاک ته ډیر محبوب کلام سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهٖ دے.

فائده:- د آدم د پیدائش په وخت کښې ملائکو خپل عمل ښودلے وو چه نَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ. نو چه کومه وظیفه ملائکے کوی. دا به ولے ښه نه وی او په اسمانو نو کښې خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی چه یو لیشت ځائ خالی نشته په ټول اسمان کښې ملائکے تسبیح او تحمید وائی.

(۳) عَنْ اَبِیْ طَلْحَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلعم مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ اَوْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ مِائَةَ مَرَّةٍ كَتَبَ اللهُ لَهٗ مِائَةَ اَلْفِ حَسَنَةٍ وَاَرْبَعًا وَّعِشْرِيْنَ اَلْفَ حَسَنَةٍ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ اِذًا لَا يَهْلِكُ مِنَّا اَحَدٌ قَالَ بَلٰى اِنَّ اَحَدَكُمْ لَيَجِيْءُ بِالْحَسَنَاتِ لَوْ وُضِعَتْ عَلٰى جَبَلٍ اَثْقَلَتْهُ ثُمَّ تَجِيْءُ النِّعَمُ فَتَذْهَبُ بِتِلْكَ ثُمَّ يَتَطَاوَلُ بَعْدَ ذٰلِكَ بِرَحْمَتِهٖ.
(حاکم)

طلحه د خپل پلار او د نیکه نه روایت کوی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه چا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اووے نو جنت ته به داخل شی. یا به ورله جنت واجب شی. او چا چه سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهٖ سل کنداره اووے. نو د ده د پاره به یو لاکه څلیریشت زره نیکئ اولیکلے شی. اصحابو اووے. چه بیا خو به په قیامت کښې زمونږ نه هلاکت نه وی دوی او. خو د یو بنده به دومره نیکئ وی چه غر به ئے ونشی پورته کولے. خو د خدائی نعمتونه به ئے ختمے کړی. نو بیا به په ده خدائ خپل رحم اوکړی. او خلاص به شی.

فائده:- که نیکئ هر څومره ډیرے وی. ولے د خدائی نعمتونه هم بے شماره دی. نو که د

نیکوبد وحساب به کیږی. نو بل خوا به زمونږ سره د نعمتونو حساب هم کیږی. حکه خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی. چه ستا تلس شلے اندامونه دی. نو په هر اندام
یو خیرات کوه. د خوب نه پس چه بنده ویښ شی. نو بیا ټول اندامونه روغ شی. او کار
شروع کړی. اصحابو عرض اوکړو چه دومره به مونږ څه رنګ اوکړو؟ نو خوږ نبی صلی
الله علیه وسلم اووے. چه هره تسبیح صدقه ده. د عشے هر تکبیر او تهلیل صدقه ده.
د لارے نه ضرری خیز لرے کول خیرات دے. په اَلْهٰکُمُ التَّکَاثُرُ کښ د نعمتونو د
سوال ذکر دے. ابن عباسؓ وائی چه د ټول وجود د هر اندام د روغوالی سوال به
کیږی. چه تا دوی په څه لګولی وو. تشه کیږه د ساتلے ده که نور څه عبادت د هم کړیدے.
او په سورة بنی اسرائیل کښ دی. اِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ کُلُّ ذٰلِکَ کَانَ عَنْهُ
مَسْئُوْلًا. ستا نه به ستا د غوږو و نو سترګو او زړه تپوس کیدے شی. حضرت علیؓ
وائی. چه پروړی اوبخے او به هم لوئی نعمت دے. د دے په باره کښ به هم تپوس کیږی
د عشے د اوسیدو ومکان. بعض اصحابو عرض اوکړو چه مونږ خو په مړه ګیډه پروړی
ته هم نو زمونږ نه به د څه سوال کیږی. نو وحی نازله شوه چه و بے په خپلو پیزار
نه دے. یخے اوبه نه دی اصحابو چه د خپلے لوږے او د کافرانو سره د جنګونو ذکر اوکړو
نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اووے. چه تاسو به ډیر زر مالدار شی. روغ
وجود یکښی لوئی نعمت دے. زمونږ اودے نعمتونو نه تکرنه دے. نو د دے به شکریه
څه ادا کړو.

یوه ورځ ابو بکرؓ او عمرؓ او خوږ نبی ﷺ د لوږے د لاسه د غرمے په جمات کښ
یو ځائے شو. او یو بل نه ئے د خپلے لوږے ذکر اوکړو. دوی د دے وار ه د ابو ایوبؓ کره
لاړو. د ده بی بی دوی ډیر په عزت کینول. په دے کښ ابو ایوبؓ د کجورو د یو غونچکے سره
راغے. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ووے. پخے څه به د راوړے وے. ده ووے چه ما و
چه کومے مو خوښے وی هغه اوخورئ. بیا ئے یو چیلے حلال کړ څه ئے اوریت کړو او څه
ئے پوخ کړو. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم لږه غوښه په ډوډئ کښ فاطمے بی بی ته اولیږله.
حکه چه دا هم ډیرو وختونو او وږے وه. د خوراک نه پس خوږ نبیؐ اووے. چه دا هر قسم
خوراک او سکاک د الله نعمتونه دی. او د او بنکو په بهیدو کښ ئے اووے. چه د دے نعمتونو

به زموږ نه سوال کیږی. او دوی ته یې اووې چه نعمت ته لاس کړی نو بسم الله وایئ. او چه خوراک اوکړئ نو اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ هُوَ اَشْبَعَنَا وَ اَنْعَمَ عَلَیْنَا وَ اَفْضَلَ اووایئ چه دَ هغې خدائ دَ پاره تعریف دې چه موږ ئې ماړه کړو. او په موږ ئې انعام اوکړو. او ډیر زیات ئې راکړه. دغسې په دې حالت کښ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ ابو الهیثم کره تلې وو. یو کذا ر حضرت عمرؓ دَ یو یمن ر وند، کوز کوټکی په خوا کښ تیریدنه اوکړه. دوی ملګروته اووې. چه تاسو په دُغه نعمت و بنئ؟ دوی وې په ده څه نعمت دې؟ دوی اووې. ولې واړه بول په اسانه نه کوی؟.

عبد الله بن مسعود وې. چه دَ قیامت په ورځ به درې دربار ګې لګی. په یو کښ دَ نیکئ حساب دې. په دویم کښ دَ الله دَ نعمتونو حساب دې. په دریم کښ دَ ګناهونو مطالبه ده. نو نیکئ به دَ نعمتونو په مقابله کښ شی. او بدئ به په سر پاتې شی. چه دَ الله په فضل به معاف کیږی. نو خومره چه ډیرې نیکئ پیدا شوې دومره دومره به دَ خدائ دَ نعمتونو بدل پیدا شی. زموږ نه خومره ګری دَ هر الله ام نه دومره ګناهونه کیږی. چه دَ نیکو په ډیرو کولو کښ ورله ډیر محنت پکار دې.

په قیامت کښ به دَ بنده دَ عملونو دری لګیدلی دی. او څکښ به دوزخ وی. نو بنده له پکار دی. چه هر قسم صدقه اوکړی اګر که دَ کجورې یوه ټکړه ولې نه وی. په قیامت کښ به اول دَ صحت، بیا دَ یخو اوبو تپوس کیږی. پنځه خبرې دی. چه دَ دې په دا سې تپوس کیږی چه خپل عمر دِ په څه لګولې دې؟ دَ ځوانئ طاقت دِ په څه لګولې دې؟ مال دِ څه رنګ ګټلې او بیا دِ څه رنګ لګولې دې. او په خپل علم دِ څومره عمل کړی دې.

۴، عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَقِیْتُ اِبْرَاهِیْمَ لَیْلَةَ اُسْرِیَ بِیْ فَقَالَ یَا مُحَمَّدُ اِقْرَأْ اُمَّتَكَ مِنِّیْ السَّلَامَ وَاَخْبِرْهُمْ اَنَّ الْجَنَّةَ طَیِّبَةُ التُّرْبَةِ عَذْبَةُ الْمَاءِ وَاِنَّهَا قِیْعَانٌ وَاَنَّ غِرَاسَهَا سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا

دَ ابن مسعود نه روایت دې. ده وې چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وې. چه هر کله زه دَ ابراهیم سره دَ معراج په شپه یو ځائ شوم. نو ده راته اووې چه اې محمده! خپل امت ته زما دَ طرف نه سلام وایه. او ورته اووایه چه جنت پاکه خاوره لری خوږې اوبه دی. او داخالی ډاګ دې. او ددې وَنې

اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ ط (ترمذی) سُبْحَانَ اللهِ تر آخره دے. نو په هره کلمه به یوه ونه لګی.

فائده:- علماء وائی. چه حضرت ابراهیم په موبز سلام اووے. نو ښوک چه دا حدیث واوری نو پکار دی. چه دے وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اووائی. چه خاوره زرخیزه او اوبه ښے دی. نو د دے پید اوار په هم ډیر ښه دی. چه د سُبْحَانَ اللهِ ونه اولګوے. نو بیا به په دے زمکه او اوبو کښی ډیره ترقی اوکړی. ته خوونه اولګوه. بیا به نوره ترقی د غلته په خپله کوی. د جنت د خالی زمکے دا مطلب دے. چه هرچاته به د هغه د عمل برابر جنت ورکیدے شی نو ګویا عملونه د ونو سبب اوګرځیده. څه قدرے ونے به د مخکښ نه په جنت کښ وی خو بیا چه څومره بنده اعمال اوکړی. نو به دے په نورے زیاتے ونے اولګی. مولانا ګنګوهیؒ په کوکب دری شرح ترمذی کښ لیکی. چه د جنت ونے د خمیره په شان یوځائی جمع وی. بنده چه څومره اعمال کوی. نو دومره د دا په برخه جنت کښ ونے لګی. او بیا لوئیږی.

(۵) عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم مَنْ هَالَهُ اللَّيْلُ أَنْ يُكَابِدَهُ أَوْ بَخِلَ بِالْمَالِ أَنْ يُنْفِقَهُ أَوْ جَبُنَ عَنِ الْعَدُوِّ أَنْ يُقَاتِلَهُ فَلْيُكْثِرْ مِنْ سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ فَإِنَّهَا أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ جَبَلِ ذَهَبٍ يُنْفِقُهُ فِي سَبِيلِ اللهِ (طبرانی)

د ابو امامهؓ نه روایت دے. ده وے چه خوربنی علیه السلام وے. چه هغه کس چه د شپے د ویخ او عبادت نه عاجزه وی. او د بخیلئ په وجه مال نه شی لګولے. او د دښمن سره جهاد نشی کولے. نو سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ ډیر دوائی. ځکه چه دا خدائی ته د سرو زرو د غره د خدائی لګحت نه زیات محبوب دے.

فائده: څه مهربان خدائی دے. د هر قسم بنده د پاره د مرتبو حاصلولو طریقے ښودلے. که سره د دے بنده بیا هم درجات نه حاصلوی. نو دا د بنده خپله کم بختی ده.

(۶) عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ الْكَلَامِ إِلَى اللهِ أَرْبَعٌ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ لَا يَضُرُّكَ بِأَيِّهِنَّ بَدَأْتَ (مسلم)

سمره د جندب ځوئی دے. چه خوربنی علیه السلام وے. چه خدائی ته ډیرے محبوبے کلمے څلور دی. سبحان الله. الحمد لله. لا اله الا الله. والله اکبر. په هرے یوے کلمے چه د مخکښ شروع اوکړه خیر دے.

فائده:- په قرآن شریف کښې دا کلمې را غلي دي. د دے حکم او ترغیب ډیر ځایه ورکړے شوے دے. د اختر دنو ورول په دے کلمو د را دستو خوږ نبي فرمان کړیدے.

(۷) عن ابي هريرة قال ان الفقراء المهاجرين اتوا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقالوا قد ذهب اهل الدثور بالدرجات العلى والنعيم المقيم فقال وماذاك قالوا يصلون كما نصلي ويصومون كما نصوم ويتصدقون ولا نتصدق ويعتقون ولا نعتق فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم افلا اعلمكم شيئا تدركون به من سبقكم وتسبقون من بعدكم ولا يكون احد افضل منكم الا من صنع مثل ما صنعتم قالوا بلى يا رسول الله قال تسبحون وتكبرون وتحمدون دبر كل صلوة ثلثا وثلثين مرة قال ابو صالح فرجع فقراء المهاجرين الى رسول الله صلعم فقالوا سمع اخواننا اهل الاموال بما فعلنا ففعلوا مثله فقال رسول الله صلعم ذلك فضل الله يؤتيه من يشاء (بخاری)

د ابو هریرةؓ نه روایت دے. چه فقیران او مهاجرین د خوږ نبيؐ سره راغله. بس دوی اووے. چه موبږ نه خوشحاله لوړے مرتبے او باقي نعمتونه واغستل. خوږ نبي صلی الله علیه وسلم اووے چه څه رنګ؟ دوی اووے. چه موبږ او دوی مونځونه او روژے یو شان کوو. خو دوی خیرات کوی او موبږ نه شو کولے. دوی غلامان آزادوی او موبږ لا یې نه شو آزادولے. نو خوږ نبي صلی الله علیه وسلم اووے. چه زه درته داسے څیز او ښایم. چه تاسو به مخکني لاندے کړئ. او ستاسو نه به څوک غوره نه وي. خو که ستاسو غوندے چا اوکړه. دوی ووے ولے نه؟ خوږ نبي اووے. چه تسبیحات دری دیرش کرته راه د غه رنګ الحمد لله او الله اکبر د مانځه نه روستو وایئ. دوی بیا خوږ نبي له راغله. چه دا کار خوشحاله هم شروع کړو. خوږ نبي صلی الله علیه وسلم ورته اووے. چه دا خو د خدائی پاک فضل دے. چه چا ته دے خوښه شي ورکوی یې.

۞ ۞ ۞

او خوږ نبي علیه السلام د فقیرانو ته اووے. چه خیرات خو یو لځ د مال نه وي. هر کلمه چه دا وایي نو دا خیرات دے. تر دے چه خپلے بي بي سره کورولے هم خیرات دے. اصحابو اووے. چه په دے خو زموږ شوق پوره کا شي.

نو په دیکښې څه خبرا ثواب دے. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل. که دېرو ډېرې بی بی سره موکوږ والے کړے وے. نو دا بیا نا نه وه څه؟ څکه په حلال کور والی کښې ثواب دے.

فائده:- خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د دے جواب کښې د بچی پیدا کید لو ښیوه هم ذکر کړی دی. نو گویا کوږ والے د بچی د پیدا کید و سبب دے. څکه په دے کښې ثواب دے. د دے امت محمدی یو فرد به چه پیدا شی نو د دین کار و نه به کوی. گویا په کور والی تا یو دیندار پیدا کړو.

(۸) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَبَّحَ اللّٰهَ دُبُرَ کُلِّ صَلٰوةٍ ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِیْنَ وَکَبَّرَ اللّٰهَ ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِیْنَ فَتِلْکَ تِسْعَةٌ وَّ تِسْعُوْنَ وَقَالَ تَمَامُ الْمِأَةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَ لَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ غُفِرَتْ خَطَایَاهُ وَاِنْ کَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ. (مسلم)

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه څوک تسبیح د مانځه نه روستو دری دیرش کرتے اړه او الله اکبر دری دیرش کرته اړه او الحمد لله دری دیرش کرته اړه او الله اکبر دری دیرش کرته اړه او دوایی نو دا یو کم سل شی. او د سلو پوره ولے په لا اله الا الله وحده لا شریک له له الملک و له الحمد و هو علی کل شیء قدیر. اکی نو د ده ټول گناهونه به معاف شی اگرکه دا د دریاب د ځگ هومره وی.

د دے کلمو د شمیر په باره کښې دری دیرش پنځوښت او یوولس او لس په روایا تو کښې راغلے دے. دا اختلاف د حالاتو په لحاظ سره دے. څوک ډیر مشغول وی څوک لږ نو هغوی ته په دے لحاظ مختلف شمیر خودلے شوے دے. خو دارو به د حکیم په هدایت استعمالیږی. کے زیاتے به پکښې نه کوی.

(۹) عَنْ کَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مُعَقِّبَاتٌ لَا یَخِیْبُ قَائِلُهُنَّ اَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ کُلِّ صَلٰوةٍ مَّکْتُوْبَةٍ ثَلٰثٌ وَّثَلٰثُوْنَ تَسْبِیْحَةً وَّثَلٰثٌ وَّ ثَلٰثُوْنَ تَحْمِیْدَةً

د کعب د عجره د څوی نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه یو څو روستو راتلونکے کلمے دی. چه د دے ویونکی به ناامراده نه وی. هغه دا چه د هر مانځه نه روستو دری دیرش کرته سبحان الله او د غه هومره

وَارْبَعٌ وَّثَلٰثُوْنَ تَكْبِيْرَةً (مسلم)

الحمد لله او څلور دیرش کله الله اکبر وایي۔

فائده:۔ د مانځه نه روستو ویلو په وجه دے ته معقبات وایي۔ یا د ګناه نه پس دا کلمے ګناه لرے کوي۔ یا په یو بل پسے لوستے شي۔

(۱۰) عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَفَعَهُ اَمَا يَسْتَطِيْعُ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّعْمَلَ كُلَّ يَوْمٍ مِثْلَ اُحُدٍ عَمَلًا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَنْ يَّسْتَطِيْعُ قَالَ كُلُّكُمْ يَسْتَطِيْعُ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَاذَا قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَّلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَّالْحَمْدُ لِلّٰهِ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ وَّاللّٰهُ اَكْبَرُ اَعْظَمُ مِنْ اُحُدٍ (حصن)

عمران بن حصین د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي۔ دوي وے۔ چه آیا تاسو د احد هومره عمل کولے شئ۔ دوي وے چه دا به څوک اوکړي؟ خوږ نبي علیه السلام ورته اووے چه دا خو هر څوک کولے شي۔ دوي وے څرنګه؟ خوږ نبي اووے۔ سبحان الله د احد نه لویه ده۔ لا اله الا الله د احد نه لویه ده۔ او الحمد لله او الله اکبر د احد نه لوي دي۔

فائده:۔ سبحان الله څو لوا سمانونو او زمکو ته په ثوابونو ډکه وي۔ بل حدیث دے۔ چه نیم تله په سبحان الله ډکیږي او بنمه بیا په الحمد لله ډکیږي۔ او الله اکبر د زمکے اسمانونو مینځ ډکوي۔ دا کلمے د نمر د لاندے د ټولو څیزونو نه غوره شودے شوي دي۔

وایي چه سلیمان علیه السلام په تخت سور په هوا روان وو۔ پیریان او مرغي ورسره مخکښي روستو روانے وے۔ یو عابد چه دے اولید۔ نو ده اووے چه د ده د ټولے باچاهۍ نه یو سبحان الله غوره ده۔ ځکه چه دا باچاهي فنا کیدونکے ده۔ او سبحان الله باقي پاتے کیدونکے ده۔

(۱۱) عَنْ اَبِيْ سَلَامٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلعم قَالَ بَخٍ بَخٍ خَمْسٌ مَا اَثْقَلَهُنَّ فِي الْمِيْزَانِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ (الحصن)

ابی سلام وے۔ چه یو کله د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم اووے۔ چه واه واه! پنځه کلمے دي۔ چه په تول کښ ډیرے درنے دي۔ لا اله الا الله او الله اکبر او سبحان الله او الحمد لله

فائده:۔ بخ بخ په عربي کښ د ډیرے خوشحالۍ د پاره استعمالیږي خوږ نبي په

دے کلمو ډیره خوشحالی ښکاره کوی . نو عاشقانو دَ رسول ته پکار دی . چه دَ دے
کلمو په وینا ځان قربان کړی . الله په دَ دے کلمو قدر راوشی .

(۱۲) عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ رَجُلٍ
مِّنَ الْأَنْصَارِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قَالَ نُوْحٌ لِابْنِهٖ اِنِّيْ
مُوْصِيْكَ بِوَصِيَّةٍ وَّقَاصِرُهَا
لِكَيْ لَا تَنْسٰهَا اُوْصِيْكَ بِاثْنَيْنِ
وَاَنْهَاكَ عَنِ اثْنَيْنِ اَمَّا اللَّتَانِ اُوْصِيْكَ
بِهِمَا فَيَسْتَبْشِرُ اللّٰهُ بِهِمَا وَصَالِحُ خَلْقِهٖ
وَهُمَا يُكْثِرَانِ الْوُلُوْجَ عَلَى اللّٰهِ اُوْصِيْكَ
بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَاِنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ
لَوْ كَانَتَا حَلْقَةً قَصَمَتْهُمَا وَلَوْ كَانَتَا
فِيْ كِفَّةٍ وَّزَنَتْهُمَا . وَاُوْصِيْكَ بِسُبْحَانَ
اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ فَاِنَّهُمَا صَلٰوةُ الْخَلْقِ وَبِهِمَا
يُرْزَقُ الْخَلْقُ وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ
بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ وَ
اَمَّا اللَّتَانِ اَنْهَاكَ عَنْهُمَا فَيَحْتَجِبُ اللّٰهُ
مِنْهُمَا وَصَالِحُ خَلْقِهٖ اَنْهَاكَ مِنَ الشِّرْكِ
وَالْكِبْرِ (نسائی)

دَ سلیمان نه چه دَ یسار ځوئی دے روایت دے .
دے دَ یو انصاری نه روایت کوی . چه خوږ نبی
صلی الله علیه وسلم وے . چه نوح علیه السلام خپل
ځوئی ته اووے . چه زه درته یو نصیحت کوم . او دَ
نه هیریدو په غرض لږ . وصیت درته کوم . دوه
دَ کولو او دوه دَ نه کولو کارونه دی . هغه دوه دَ
کولو خو داسے دی . چه په هغے خدائی ډیر خوشحالیږی
او دَ الله نیک مخلوق پرے هم خوشحالیږی . او دا دوارہ
کارونه خدائی ته ډیر مقبول دی . یو دیکښ یو لا اله الا
الله دے . که ټول اسمان یو حلقه شی نو بیا به هم دا
کلمه اسمان او شلوی . او بیره په لاړه شی . او که
ټول زمکه او اسمان دَ تلے په یو چابړی کښ واچوے
نو دَ کلمے چابړے به په دوی درونده شی . او دویم
دَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ وئیل دی . چه دا دَ ټول مخلوق
عبادت دے او دَ دے په برکت ټول مخلوق ته
روزی ورکیدے شی . داسے مخلوق نشته چه تسبیح
نه وائی . او دوه دَ منع ځیزونه شرک او تکبر دے دے دَ
خدائی نه پرده راځی .

فائده:- دَ تسبیح په باره کښ خو خدائی په قرآن کښ وائی . وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ
بِحَمْدِهٖ په معراج کښ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ اسمانونو تسبیح په خپله اوریدلے ده .
یو ګذار خوږ نبی علیه السلام څه خلق په اسونو او اوښانو ولاړ اولیدل . نو خوږ
نبی علیه السلام ورته اووے . چه دَ ساروے نه کرسئ او ممبرونه مه جوړوئ . ډیر
ځناور دَ بندیانو نه زیات او غوره ذکر کونکی دی . ابن عباس وائی چه پټی هم تسبیح وائی .

او ذدے ثواب دَ بنې کرونګيښ ته ورکيدے شي. يوځل ارخوږ نبي صلی الله عليه وسلم ته ماته دوه پړئ پيش شوه. نو خوږ نبي عليه السلام اووے چه دا هم تسبيح والي — اصحابو اووے تاسو دَ دوی تسبيح اورئ؟ دوی وے او. خوږ نبي عليه السلام يو کس ته اووے. چه دا يا له فلانکي ته نزدے کړه. نو ده هم دَ دے تسبيح واوريده دغسے دويم او دريم هم واوريده. بيا خوږ نبي ؐ اووے بس کړئ که چا وانوريده نو تاسو به هغه ته ګنهګار اووايئ. دا دَ کشف خبره ده. پيغمبرانو ته خو کشف پوره حاصل وو. او بکار هم وو چه دوی ته کشف حاصل شي. ډيرو اصحابو ته دَ خوږ نبي عليه السلام دَ صحبت په وجه کشف حاصل شوے وو

صوفيانو ته هم دَ ډيرو چيلو او خوارو په وجه حاصليږي. چه دوی دَ ګټو او نو او ځنا ورو تسبيح اوري. دَ دوی په خبرو پوهيږي. خو محققين دا خبره دَ کمال خبره نه مني. دا قسم صفائي بنه او بد دواړو ته حاصليدے شي. بلکه دا دَ مبتدی دَ پاره ضرري ګڼړی. ځکه چه دے په ديکښ پريوځي. او دے قدرے ته کمال اووائي. او دَ مخکښ ترقئ نه پاتے شي. دَ مولانا خليل احمد يو خادم ته دا قسم حالات پيښ شو. نو دوی په ده ذکر بند کړو بلکه په ديکښ دا نقصان دے. چه ده ته دَ نورو خلقو ګناهونه معلوم شي. او په دے په زړه کښ شيرن والے راځي. علامه شعراني په ميزان الکبری کښ ليکلي دی. چه امام اعظم ؒ به چه څوک په اودسه اوليده. نو ده ته به هغه ګناهونه په نظر راتله. کوم به چه په اوبو تله. نو دے چه ده په يکښ دَ ودوکي او لوئ فرق هم شو. يوځل ارلو ځوان اودس کوو. نو ده ته امام اعظم ؒ اووے. چه ګوره ځوانه دَ مور پلار دَ نا فرمانئ نه ځان اوساته. او توبه اوباسه. ده توبه او بکه بل ته يے اووے نه زنا مکوه. دا لوئ نقصان دے. ده هم دَ زنانه توبه اوويسته. دَ يو کس نه دَ شرابو او نورو ګناهونه بهيده. دے يې دَ دے نه منع کړو. بيا امام اعظم ؒ سوال اوکړو. چه خدايه دا پوهه زمانه لرے کړے نه دَ خلقو په ګناهونو خبريده نه غوارم. نو دعا يے قبوله شوه. او هم په دے زمانه کښ امام اعظم ؒ دَ مستعمل اوبو دَ ناپاکوالی حکم کړے وو. ځکه چه ده ته دا اوبه پليتے او بد بويه ښکاريدے. او چه بيا يے دعا قبوله شوه. نو دوی دَ دے نه را اوګرزيده. دَ شاه عبدالرحيم صاحب

یو خادم به هر ځائ انوار لیدل. په دے وجه دوی ډیرے ورځے باهر نه کیناستل
دا قسم ډیرو واقعات دی۔

(۱۳) عَنْ اُمِّ هَانِیٍٔ قَالَتْ مَرَّ بِیْ رَسُوْلُ اللهِ صلی الله علیه وسلم فَقُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللهِ کَبِرْتُ وَضَعُفْتُ فَمُرْنِیْ بِعَمَلٍ اَعْمَلُهٗ وَاَنَا جَالِسَةٌ قَالَ سَبِّحِیْ مِاْئَةَ سَبْحَةٍ فَاِنَّهٗ تَعْدِلُ لَکِ مِاْئَةَ رَقَبَةٍ تَعْتِقُهَا مِنْ وُلْدِ اِسْمَاعِیْلَ وَاحْمِدِیْ اللهَ مِاْئَةَ تَحْمِیْدَةٍ فَاِنَّهَا تَعْدِلُ لَکِ مِاْئَةَ فَرَسٍ مُسْرَجَةٍ مُلْجَمَةٍ تَحْمِلِیْنَ عَلَیْهَا فِیْ سَبِیْلِ اللهِ وَکَبِّرِیْ اللهَ مِاْئَةَ تَکْبِیْرَةٍ فَاِنَّهَا تَعْدِلُ لَکِ مِاْئَةَ بُدْنَةٍ مُقَلَّدَةٍ مُتَقَبَّلَةٍ وَهَلِّلِیْ اللهَ مِاْئَةَ تَهْلِیْلَةٍ قَالَ اَبُوْ خَلَفٍ اَحْسَبُهٗ قَالَ تَمْلَاُ مَا بَیْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ وَلَا یُرْفَعُ لِاَحَدٍ عَمَلٌ اَفْضَلُ مِمَّا یُرْفَعُ لَکِ اِلَّا اَنْ یَّاْتِیَ بِمِثْلِ مَا اَتَیْتِ۔ (احمد)

د ام هانی نه روایت دے. ده وے چه حُما سره خوږ نبی علیه السلام راغئ او ما ورته اووے چه خوږه نبی! زه بوډۍ یم او کمزورے یم لو ما ته داسے عمل اوښایه. چه زه یئ په ناسته کوم. خوږ نبی علیه السلام ورته اووے. چه سل ځله اره تسبیح وایه دا به د سلو اسماعیلی غلامانو د آزادولو ثواب لری. او سل ځله اره الحمد وایه. دا به د سلو زین شوو او اکو لرونکو اسونو د خدائ په لار کښ جهاد کولو برابر وی او سل ځله الله اکبر وایه. دا به د سلو اوښو چه اسیلو ور ته بیا ته او قبولے شی ثواب لری. او لا اله الا الله سل ګذاره وایه. ابوخلف وے چه خوږ نبی علیه السلام اووے. دا به د زمکے او اسمانو منځ ډک کړی. او ستا نه به د بل چا عمل نیات نه وی. خو چه ستا هسے عمل کوی نو هغه به خو دوی.

فائده:- بی بی سلمیٰ د ابو رافع بی بی ته خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د اکلے لس لس ګذاره ویل سبحو لی وو او د دے په جواب کښ وائی. چه پاکی او حمد واقعی حما ډیاده دے. او بیا اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ لس ګذاره نو خدائ ورته اووائی چه ما او بخلے. نه به اس ګذاره بخنه غواړے. او خدائ په ورته لس ګذاره وائی او م بخلے. دلود یګانو او کمزورو د پاره خومره اسانه وظیفه ده. او خومره مختصره ده. او خومره لو ثوابونه لری. نو که سړه د دے وړی ثوابونه نه حاصلوو نو دا به زمونږ خومره بد نصیبی وی. د دغسے یئ ام سلیم ته هم ښودلے وو. چه لس لس ګذاره سبحان الله، الحمد لله او الله اکبر وا او چه بیا څه غواړے. هغه غواړه. خدائ په ورته وائی چه ستا دعا مقبوله کړه.

ځومره به ښه وي. چه په هر اوږکار وخت کښ دا کلمے وایو. اُتو ابو نه کښتو. په بے مطلبه
او خرابو خبرو به لګیا یو. او د ثواب ګټے . . . نه کوو. توبه خدایه.

(۱۴) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلی اللّٰه عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِکَةً یَطُوْفُوْنَ فِی الطُّرُقِ یَلْتَمِسُوْنَ اَهْلَ الذِّکْرِ فَاِذَا وَجَدُوْا قَوْمًا یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ تَنَادَوْا هَلُمُّوْا اِلٰی حَاجَتِکُمْ فَیَحُفُّوْنَهَا بِاَجْنِحَتِهِمْ اِلَی السَّمَاءِ فَاِذَا تَفَرَّقُوْا عَرَجُوْا وَصَعِدُوْا اِلَی السَّمَآءِ فَسَاَلَهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ یَعْلَمُ مِنْ اَیْنَ جِئْتُمْ فَیَقُوْلُوْنَ مِنْ عِنْدِ عِبَادِکَ یُسَبِّحُوْنَکَ وَیُکَبِّرُوْنَکَ وَیُحَمِّدُوْنَکَ فَیَقُوْلُ هَلْ رَاَوْنِیْ فَیَقُوْلُوْنَ لَا فَیَقُوْلُ کَیْفَ کَیْفَ لَوْ رَاَوْنِیْ فَیَقُوْلُوْنَ لَوْ رَاَوْکَ کَانُوْا اَشَدَّ لَکَ عِبَادَةً وَاَشَدَّ لَکَ تَمْجِیْدًا وَاَکْثَرَ تَسْبِیْحًا فَیَقُوْلُ مِمَّا یَسْئَلُوْنَ فَیَقُوْلُوْنَ یَسْئَلُوْنَکَ الْجَنَّةَ فَیَقُوْلُ هَلْ رَاَوْهَا فَیَقُوْلُوْنَ لَا فَیَقُوْلُ فَکَیْفَ لَوْ رَاَوْهَا فَیَقُوْلُوْنَ لَوْ اَنَّهُمْ رَاَوْهَا کَانُوْا اَشَدَّ عَلَیْهَا حِرْصًا وَاَشَدَّ لَهَا طَلَبًا وَاَعْظَمَ فِیْهَا رَغْبَةً قَالَ فَمِمَّ یَتَعَوَّذُوْنَ فَیَقُوْلُوْنَ یَتَعَوَّذُوْنَ مِنَ النَّارِ فَیَقُوْلُ فَکَیْفَ لَوْ رَاَوْهَا فَیَقُوْلُوْنَ لَوْ اَنَّهُمْ رَاَوْهَا کَانُوْا اَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا وَاَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً

د ابو هریرةؓ نه روایت دے. دا وئے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه د خدائ څه ملائکے دي چه په لارو کښ ګرځي. د ذکر کونکو تلاش کوي. چه ملائکے دوي بیا مومي. نو یو بل ته چغې کړي. چه را شئ دغه دي. نو دوي په وزرو کښ تر آسمانه راګیر کړي. او چه دوي خوارہ شي. نو دوي بره اوخیژي آسمان ته نو خدائ ترے سره د علمه تپوس اوکړي. چه د کوم ځائ نه راغلئ؟ نو دوي به اووائي چه ستا د تسبیح، تکبیر او تحمید ویونکو د خوا نه راغلو. نو خدائ به دوي ته اووائي چه دوي زه لیدلے یم؟ دوي به اووائي چه نه! نو خدائ پاک به ورته اووائي چه که زه دوي اولیدم نو څه حال به یے اوي؟ دوي به اووائي. چه بیا خو به ستا ډیر عبادت کوي او لمنځ به دِ وائي. بیا به ورته خدائ اووائي چه دوي څه غواړي؟ دوي به اووائي چه جنت. خدائ به اووائي چه وے دوي جنت لیدلے دے. دوي به اووائي چه نه — خدائ به اووائي چه که دوي جنت اووینی نو بیا به یے څه حال وي. دوي به اووائي چه بیا خو به د دے ډیر حرص کوي. او دا به غواړي او شوق به یے لري. بیا به خدائ اووائي چه د څه نه پناه غواړي؟ دوي به اووائي چه د دوزخ نه. خدائ

فَيَقُوْلُ اُشْهِدُكُمْ اَنِّیْ قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ فَيَقُوْلُ مَلَكٌ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ فُلَانٌ لَيْسَ مِنْهُمْ اِنَّمَا جَآءَ لِحَاجَةٍ قَالَ هُمُ الْقَوْمُ لَا يَشْقٰى بِهِمْ جَلِيْسُهُمْ (بخاری)

به اووائی چه ولے دوی دوزخ لیدلے دے؟ دوی به وائی نه. خدائی به اووائی چه که دوزخ اووینی نو بیا. دوی به اووائی چه بیا خو به د دے نه ډیره تیښته کوی. او ډیر به ترے یریږی. نو خدائ به اووائی چه تاسو ګواه شئ چه ما دوی اوبخل
په دوی کښی به یو ملائکه اووائی. چه یو کس خو پکښی په خپل حاجت ناست وو.
خدائ به اووائی چه د ذاکرینو سره ناست م هم اوبا خه. دا خوش قسمته دی
مرکری یې هم خوش قسمته دی.

فائده:- د فرښتو په ذاکرینو پسے ګرځیده مخکښی هم تیر شوی دی. خو دا خبره پکښی عجیبه ده. چه د دے پیښینو په ملګرتیا کښی تښه ناسته هم د بخښنے ذریعه ګرځی. دا په کُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِیْنَ د عمل په وجه او د ذاکرینو د خدائ سره د عزت په وجه او شو. نو الله دِ دا زمونږ هم نصیب کړی. کنی ذکرونه او عبادتونه خو ګران دی. د نوافلو په وجه د خدائ نزدے ولے حاصلیږی. ترڅو چه د دے اندامونه بیا صرف د الله د رضا کارونه کوی. د غسے ډیر واقعات دی. یو پکښی دا دے. چه شیخ ابوبکر کتانی وائی. چه یو ګل ار په حج کښی په مکه کښی د صوفیانو ګنړه ناسته وه. په دے بحث وو. چه د خدائ عاشق چاته وائی. په دوی کښی جنید بغدادی هم وو. د ټے چپ وو. مرکړو ورته اووے چه مونږ خو خپلے خبرے اوکړے ته هم څه اووایه. ده اووے چه عاشق دے ته وائی. چه ځان ورک کړی او د خدائ د ذکر سره ځان او تړی او د دے حق اداکړی. دے خدائ ته ګوری. د ده زړه د الله د جلال نه سوزیدلے دی. ذوق د پیاره د ذکر د شرابو د پیالے هیسے وی. د ده خبرے د خدائ خبرے وی. د ده د ژبے نه خدائ خبرے اوباسی. نو له ناسته او لاړه د خدائ د پیاره کوی. خو ل شکل وخه او خوب هر څه د الله د رضا د پیاره کوی. دے نه د دنیا رسم رواج ته ګوری. نه د خلقو اعتراض ته پروا لری.

سعید بن المسیب یو مشهور تابعی وے. د ده سره به عبدالله بن ابی وداعه ډیر تلو راتلو. څو ورځے لنغے په تپوس معلومه شوه. چه د خپلے

بي بي په غم کښې لاس پنوونه ناست وو. دے چه ته سعيد ورته اووے. چه بل نکاح د
اوکړو. ده وے ما غريب ته کله څوک لور خو ړاکوي. سعيد ورته اووے. چه دا کار
خو ما ته اسان دے. خپله لور يې ده ته ورکړه. نکاح او خطبه او وئيلے شوه. په معمولي
مهر نکاح اوشه. عبدالله وائي چه زه ډير خوشحاله شوم. خو حيران ووم. چه دا
واده به کوم ته په څه اوړم. څکه چه څما سره خو ډيل پيسے نه وه. ما ښام شه څما
روژه وه. چه روژه م ماته کړه او کوم ته راغلم. نو څه گورم چه چا دروازه اوټکوله.
ماوے څوک يې؟ ده وے سعيد يم. حيران شوم. څکه چه تابعي سعيد خو څلويښت
کاله شوي دي. چه د جمات نه باهر چرته نه ځي راځي. بل څوک به وي. باهر چه راغلم
نو څه گورم چه دا خو هم هغه سعيد دے. زه حيران شوم ماوے تاسو څه رنګ
راغلي يئ. راته يې اووے. چه څما د لور ستا سره نکاح شوے دے. نو هغه م راوستا
ماوے چه ته به يواځے کور څه رنګ وخت تيروے. او خپله لور يې څما کره رخصت
کړه. او دے بيرته لاړو. دا جينۍ د شرمه راپريوته. ما ګاونډيان را اوغوسته.
او دوي ته م اووے. چه سعيد ماته سحر لور راکړے وه. او دغه د اوس يې څما
سره کور ته راوسته. دوي حيران شو. او دوي اووے. چه کوم ده. ماوے دا
ده. په ديکښې څما مور راغله. او دوه درے ورځې يې دا ناوے کوله. او زه يې ترے
منع کړم. درے ورځے پس ما دا اوليده. دا ډيره ښائسته او قرآن خوانه وه.
حافظه وه د احاديثو نه خبره وه. يوه مياشت نه سعيد څما سره راغے. او نه زه لاړم.
يوه مياشت پس چه زه لاړم نو ده رانه تپوس اوکړو. چه څما لور څه رنګ ده؟
ماوے په ډيرو ښو صفاتو او اخلاقو ښائسته ده. ده راته اووے. چه که څه
خلاف درکوي نو ادب ورکوه. چه زه بيرته لاړم. نو ده يو سړے را اوليږه. او د
ده په لاس يې ما ته پنځه زره روپئ راکړے. دا هغه جينۍ وه. چه عبد الملک باچا
د شهزاده وليد د پاره غوښتے وه. خو سعيد ورنکړه. عبد الملک په دے خفه شه او
سل لختے يې اووهه. دا سړه ورځ وه او يو منګے يخ اوبه يې پرے واچولے.

(۱۵) عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ

د ابن عمر نه روايت دے. ده وے چه ما د خوږ نبي صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي. چه څوک

قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ
إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ كُتِبَتْ لَهُ بِكُلِّ حَرْفٍ
عَشْرُ حَسَنَاتٍ وَمَنْ أَعَانَ عَلٰى خُصُوْمَةٍ
بَاطِلٍ لَمْ يَزَلْ فِيْ سَخَطِ اللّٰهِ حَتّٰى
يَنْزِعَ وَمَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُوْنَ
حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللّٰهِ فَقَدْ ضَادَّ اللّٰهَ
فِيْ أَمْرِهِ وَمَنْ بَهَتَ مُؤْمِنًا أَوْ مُؤْمِنَةً
حَبَسَهُ اللّٰهُ فِيْ رَدْغَةِ الْخَبَالِ يَوْمَ
الْقِيَامَةِ حَتّٰى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ وَلَيْسَ
بِخَارِجٍ (طبرانی)

سبحان الله تر آخره اووائی - نو د ده د پاره به په
هر حرف لس نیکئ اولیکلے شی - او کوم کس چه
په ناحقه جهگړه کښ د ناحقے امداد کوی - نو دے
به د الله په غصه کښ او سی - تر څو چه د دے نه
تو به اونه باسی - او څوک چه په سزا کښ ناجائز
سفارش اوکړی - نو دے د الله مقابله کوی
او څوک چه په سړی یا ښځے د دروغو الزام
اوتړی - نو په قیامت کښ به په ردغة الخبال
مقام کښ قید شی - تر دے چه دے د هغے بهتان نه
اووځی - ولے د دینه به څرنګ اووځی -

فائده :- نن ورځے څو تهانړے او تحصیلونه اکثر د ناجائزو د امداد د پاره ډک
شکاری - تهروالی او پارټی بازی د دے ناجائزو د حمایت اسباب دی - که غل وی
که زنا کار وی او که قاتل وی دے به خلاصوی - او د ده صفائی به کوی - نو به
د په دا ایمانداری ده - او دے ته یئے لا ګوره چه بیا مونږ په دے خپل اسلام فخر
کوو چه که اسلام دے خو ځائے - پکے خو مسلمان بدنام او ذلیل شه - خو نبی علیه السلام
وائی - چه څوک د عصبیت په وجه مرکز تیا کوی - یا نور دے ته راغواړی نو دے
د امت نه نه دے ـــــ ردغة الخبال هغه ځای ده - چه کوم ځائی به د جهنمیانو ویے
زوے جمع وی - نو په ربه څو مره پلیت او بد بویه مقام د دروغو د الزام لګونکی د پاره مقرر دے -
نن ورځے د سیاسی ړلو بالخصوص په یو بل بهتانونه لګول عام معمول دے - په قیامت
کښ به د دے شرعی ثبوت غوښتے شی - د ثبے دا ګرُه بنده دوزخ نه اورسوی - بعض
خلق د خلقو د خندولو د پاره هم دا قسم بهتانونه لګوی - دوستانو د ژبے خوښیده
د ځیو د خوښیدونه زیات خطرناک دی - خو نبی علیه السلام وائی چه که تاڅوک
په ناکاره والی اولیده - نو په ده پورے مه خاندی - کنی د مرګ نه مخکښ به پکښ
ګرفتار شے - خو دا هغه ګناه دے - چه ده ترے تو به اونکړے وی - ابوبکر به خپله
ژبه راښکه - او دے ته به یئے وے - چه ته ما هلاک کړے - اے الله تر را باندے

رحم اوکړے۔

(۱۶) عَنْ اَبِیْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِیِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بِاٰخِرَةٍ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَّقُوْمَ مِنَ الْمَجْلِسِ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّكَ تَقُوْلُ قَوْلًا مَا كُنْتَ تَقُوْلُهُ فِيْمَا مَضٰى قَالَ كَفَّارَةٌ لِّمَا يَكُوْنُ فِی الْمَجْلِسِ (ابوداؤد)

د ابی برزة نه روایت دے۔ دہ وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم به په خپله آخری زمانه کښ چه د مجلس نه پاسیده۔ نو دا کلمې سبحانک اللّٰهم وبحمدک تر آخره پورې ویوے۔ چا عرض اوکړو۔ چه دا دعا خو به تاسو د دے نه مخکښ نه ویے۔ نو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ورته اووے چه دا د مجلس کفاره ده۔ او په بل روایت کښ دی چه دا ورته جبریل سنو دلی دی۔

فائده:۔ عایشے رضی الله عنها یرے دا زیاتے کړیدے۔ چه خوږ نبی علیه السلام وے چه دا دعا کانے د مجلس د خطا گانو کفاره گرځی۔ او دا ورته معاف کیږی۔ په مجلس کښ هر قسم خلق وی۔ نو کله وے پیکښ هم راشی۔ ته گوره زموږ د گناهو نو د معافئ د پاره څومره اسانے کلے اوښودے شوے۔

(۱۷) عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ مِنْ جَلَالِ اللّٰهِ مِنْ تَسْبِيْحِهٖ وَتَحْمِيْدِهٖ وَتَكْبِيْرِهٖ وَتَهْلِيْلِهٖ يَتَعَاطَفْنَ حَوْلَ الْعَرْشِ لَهُنَّ دَوِیٌّ كَدَوِیِّ النَّحْلِ يُذَكِّرْنَ بِصَاحِبِهِنَّ اَلَا يُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ لَّا يَزَالَ لَهٗ عِنْدَ اللّٰهِ شَیْءٌ يُذَكِّرُ بِهٖ (رواه احمد)

د نعمان بن بشیر نه روایت دے۔ دہ وے چه خوږ نبی ﷺ وے۔ چه څوک د الله لوئی بیان کړی چه سبحان الله تر آخره وائی۔ نو دا کلمې د عرش نه چاپیره گرځی۔ او دوی لکه د کبین د مچو د ږږو د برین واواز کوی

او د خپل ویونکی ذکر کوی۔ نو ولے تاسو دا نه غواړئ۔ چه ستاسو ذکر څوک د خدائ په مخکښ کوی۔

فائده:۔ بن ونځ خو چه د چا ذکر (ص) او وزیر خوږیږیده که یو وړوکی افسر سره اوشه۔ نو دا هم د ځان د لوئی ذریعه گڼړی۔ او ځان په اسمان کښ بره گڼړی۔ سوره د دے چه په دیکښ نه د دنیا فائده دی۔ او نه د آخرت۔ ولے د دے بے فائدے ستاینے

دَپارهٔ په قرضونو اوسودونو روپئ اخلي اودا حاصلوي. په دے ورته دښمني دَ غاړے شي. ذلت اوخوشامند بے پوره ته کوي. اولاچه انتخابات شي. نو بیا خوهر یو دَ یل نه مخکښ کیږي. او دَ خدائ صاحب جلال دَ خیر او دَ شر دَ مالک سره ذکر دا اړو موږ هیڅ کار نه گڼړو. دَ دے په خواکښ ذکر دَ دین او دَ دنیا دواړو گټه ده که هغه اوغواړی نو باچایان او حاکمان دَده په دروازه کښ اوده ولے شي. او که هغه اوغواړی نو هیڅوک دَده ویخته نه شي کگولے. دے دَ الله دَخوا ذکر کښه هر څه حاصلیږي. دَ دے دَپاره محنت او خواري قدرمند کار دے. دَخدائ سره ذکر پیژنوده او دَ دنیا دَ خلقو سره عزت نه لټول. حد ده چه بے عقلي ده. اے الله موږ ته هغه کلمات او عبادات اوکړے. چه ستا سره پرے معزز شو. آمین

(۱۸) عَنْ يُسَيْرَةَ وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ قَالَتْ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيْحِ وَالتَّهْلِيْلِ وَالتَّقْدِيْسِ وَاعْقِدْنَ بِالْاَنَامِلِ فَاِنَّهُنَّ مَسْئُوْلَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسِيْنَ الرَّحْمَةَ (ترمذی)

دَ یسیرے بي بي نه چه دا مهاجره وه. روایت دے چه ما ته خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وے. چه تاسو سُبْحَانَ اللّٰه او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه او قدوس دَ گوتو په بندونو وایئ. ځکه چه دَ دے نه به سوال کیدے شي او دوي به خبرے کوي او غفلت مه کوئ رحمت به موهیرے کړي.

فائدہ:- په قیامت کښ به اندامونه په خپلو عملونو شهادة کوي. دا که ښه وي او که بد وي. لکه يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ اَلْسِنَتُهُمْ وَاَيْدِيْهِمْ په دَ دے ورځ په دَ دوي ژبے او لاسونه گواهي اوکړي او وَيَوْمَ يُحْشَرُ اَعْدَاءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ (حم سجده) دَخدائ دښمنان چه جمع کړے شي. تر آخره. په دیکښ دي چه اندامونه به په هر کس گواهي اوکړي. دوي په وسا ته وائي. چه تاسو وے گواهي کوئ. موږ خو ستاسو دَپاره داکار کړے وو. په قیامت کښ مختلف حالات دي. په یوه موقع په دوي دَ سره انکار اوکړي. چه موږ خو گناه نه دے کړے. نو به ده په اندامونه گواهي اوکړي.

په حدیث کښ راځي. چه په پل صراط آخري تلونکي به په پل ځي او یو خوا بل خوا به غورزیږي. نو فرښتے به ورته اووائي. که تا دَ پل صراط نه پورے باسو نو بیا به خپل عملونه اوښئ. نو دے به وعده اوکړي. چه او به وایم. او قسم به هم اوخوري. نو دے به

فرښتے پوړے باسي. دے به بیا پورے هم انکار اوکړي. نو فرښتے به ورته وائي. چه که
ګواهان دربانده تیرشو نو بیا. نو دے به یو خوا بل خوا اوګوري چه دلته خو څوک نشته.
څوک به ګواهي اوکړي. نو دے به اووائي چه سه ده ګواهان پیش کړئ. نو فرښتے به د ده
اندامونو ته اووائي. چه وابئ. نو دوی به ګواهي اوکړي. په دے وجه به مجبوراً اقرار
اوکړي. او دے به اووائي چه لانور ګناهونه هم دي. نو خدائ به ورته معافي اوکړي.
ځکه په ګوتو ذکر په کار دے. چه دا ځمونږ د پاره ګواهي اوکړي. تر دے چه جنات
ته د تلو قدمونه به هم ګواهي کوي. څه خوش قسمته به وي هغه بنده چه ګناه نه کوي
یا ګناه اوکړي خو توبه اوباسي. ګناه لاړه شي او تشے نیکئ نیکئ پاتے شي. د خدائ
د ذکر نه محروم ته فرمان دے. چه په تاسو به رحمت کیږي. وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ
نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ. او څوک چه د الله د ذکر نه ړوند شي. نو موږ به په
ده شیطان مقرر کړو. نو دے ټول وخت ورسره وي. او دے به بې لارے کوي.
د کافر سره خو شیطان هر وخت ملګرے وي. او د مسلمان سره د ذکر په وخت کښ
نه وي. او ما چه دے غافل شي. نو دے ئي ګمراه کولو ته بیائي. بل ځائ دي چه لَا تُلْهِكُمْ
اَمْوَالُكُمْ وَلَآ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ تاسو دِ مالونه او اولاد د خدائ د ذکر نه غافل
نه کړي. کني لوئ نقصان به اوکړئ. حضرت شبلیؒ وائي. چه ما یو مجنون اولیده.
چه وړو به کچو ویشتو. ما دا واړه د ده نه منع کړل. دوی وے ته ګوره دے وائي
چه زه خدائ وینم. دے وائي چه زه ده ته نژدے شوم. نو ده وے خدایه! دا تو
سنه اوکړه. چه دا واړه د دې اپانډے اخته کړل. ما ورته اووے. چه دا هلکان
وائي. چه ته وائے چه زه خدائ وینم. نو ده څه اوسنګه او دا اووے. چه ځما
د خدائ په هغه محبت قسم وي. چه زه ئے د خپل نژدیکت په عزت مشرف کړے
یم. چه که خدائ ځما نه لرے هم پټ دے ته شي. نو زه به ټکړے ټکړے شم. او
بیا ئے دا بیت اووے.

خِيَالُكَ فِيْ عَيْنِيْ وَذِكْرُكَ فِيْ فَمِيْ ۞ وَمَثْوَاكَ فِيْ قَلْبِيْ فَاَيْنَ تَغِيْبُ

ستا خیال ځما په سترګو کښ دے او ستا ذکر ځما په خله کښ دے. او ستا ټکونړ
ځما په زړه کښ ده. نو ته کله غائب کیدے شے.

حضرت جنید بغدادیؒ ته د زنکدن په وخت کښې چا کلمه وئیله. دۀ ورته اووے چه دا خو څۀ هر وخت یاد دۀ دے. د دے یاد هغه چا ته اوکړئ چه د دے نه غافل پاتے شوے وی. حضرت ممشاد دینوری بزرګ ته چا د زنکدن په وخت کښې دا دعا کوله. چه خدائ دِ تا ته په جنت کښې فلا نکے مقام درکړی. دۀ ورته اووے. چه ما خو په دیرش کالو کښې دے جنت ته چه سره د ساما نو نو په ما ته ښودلے کیدۀ. د خدائ د حضور ته مې دے ته څۀ کړے هم نه دے. نو ته راته دا څله څنګښې کوے. ما خو د خدائ حضور بکار دے.

دغه رنګ حضرت رویم ته چا د زنکدن په وخت کښې کلمه وے. نو دۀ ورته اووے. چه ما څخه ته خو غیر الله را غلے نه دے. نو اوس راته د غیر الله د انکار خبره څله کوے ما د څنګښې نه مخلوق پریښے دے. د احمد حضرویه نه چا د زنکدن په وخت کښې څه تپوس اوکړو. دۀ اوژړل او دۀ اووے. د پنځه کم سلو کالو نه یوه دروازه ټکوم اوس یے د وخت دے. چه په نیکئ به پرانستے شی او که په بدئ. په دے وخت کښې زۀ کله او ز کار یم چه خبره اوکړم.

(۱۹) وَعَنْ جُوَيْرِيَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا بُكْرَةً حِيْنَ صَلَّى الصُّبْحَ وَهِيَ فِيْ مَسْجِدِهَا ثُمَّ رَجَعَ بَعْدَ اَنْ اَضْحٰى وَهِيَ جَالِسَةٌ قَالَ مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِيْ فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا قَالَتْ نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عليه وسلم لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ اَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ مُنْذُ الْيَوْمِ لَوَزَنَتْهُنَّ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَرِضَا نَفْسِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ (مسلم)

د جویریے بی بی نه چه د مومنانو مور ده روایت دے. دے وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم څهانه سحر وختی د سحر مانځه ته لاړو اودا په خپله مصلیٰ ناسته وه بیا خوږ نبی علیه السلام د ساخت د ماڼځه نه پس راغے. نو دا هم په دے حال کښې ناسته وه. خوږ نبی علیه السلام ورته اووے. چه ته چه هغه ناسته وے لا ترا وسه ناسته یے؟ دے وے او. خوږ نبی علیه السلام اووے. چه ما ستا نه روستو څلور کلمے درے ګذاره اووے که دا ستا د ټولے وظیفے په مقابله کښې اوتللے شی. کوم چه تا ترا وسه اووے. نو دا به پرے درنه شی. دا کلمے دی سُبْحَانَ اللّٰه تر آخره.

"زه د الله تسبیح وایم. او د ده تعریف کوم. د ده د مخلوقاتو په برابر او د ده د رضا برابر او د ده د وزن د عرش برابر. او د ده د کلماتو په مقدار."

فائدۀ بعضؒ وائي. چه خوږ نبي علیه السلام د یوې صحابیې بي بي سره ورغی نو دے سره د کجورو زړوکي یا کانړي پراته وو. په دے یې تسبیح وے. خوږ نبي علیه السلام ورته او وے چه زه درته اسانه طریقه او ښایم. نو دا کلمات یې ورته او ښودل. د دے ذکر د غوره والي سبب ملا علي قاري دا لیکي. چه په دیکښې د خدای د صفاتو په باره کښې فکر کول پریوځي. او دا قسم ذکر د غسې لږ تلاوت د ډیرو نه غوره دے. بل په دیکښې د شمار نه عاجز والے دے. او دا کمالِ بندګي ده. ځکه صوفیان وائي چه ګناهونه بے حسابه کوے. او نیکي چه د خدای د نوم ذکر دے. په شمار کوے. خو د دے مطلب دا نه دے. چه کمئے شمار ضرور نه ده. ځکه چه شمار په خاصو او قاتو کښې د خاصو وظیفو د احادیثو نه ثابت دے. بلکه مطلب دا دے. چه یواځې په شمیر صبر مه کوه. چه بس بیا نور ذکر نه کوے. ځکه چه ذکر خو لوئې دولت دے. نو په دیکښې بندیز نه دے پکار. د دینه په مزي پیلے شوے تسبیح لوسته هم جائز شو. بعض خلق دیته بدعت وائي نو دوی په غلطئ دي. خوږ نبي علیه السلام دا د اړوکو د شمیر نه منع نه کړه. نو څه پیلے او څه هسے پرته یوه خبره ده. ځکه چه ډیرو لویو بزرګانو د تسبیح په ذریعه وظائف کړي دي. مولانا عبدالحيؒ صاحب په دے نزهة الفکر رساله لیکلے ده. د غسې ملا علي قاري هم لیکي. صوفیان تسپو ته د شیطان د وهلو کروړه وائي.

جنید بغدادیؒ په پس د کمال نه هم تسبیح استعمالوله. چا ورته او وے چه تاسو دا اوس څه کوئ. دوی ورته او وے. څه هغه شے نوله پریږدم د چا په ذریعه چه زه الله ته رسیدلے یم. ډیرو اصحابو سره به د غه قسم د کجورو اړدکي وو. په کښې به یې تسبیحات شمارل.

ابو صفیه صحابیه او سعید بن ابي وقاص به په اړدکو شمیره کوله. ابو سعید خدري نه هم دغسې نقل دے. په مرقاة کښې د ابو هریرة په باره کښې دي. چه ده به یو مزے لرلو چه په دے کښې غوټې وے. په هغې به یې تسبیح کوله. او بل ابو داؤد کښې لیکي. چه ابو هریرةؓ سره به په یوه تهیلئ کښې د کجورو اړدکي وو په

دے به یے تسبیح وے. چه دا به خالی شوه. نو یوے ویښځے به دا هر وکی بیا په تهیلئ کښ واچول. او دا تهیلئ به یے بیا د لا ته نزدے کره. د غسے د ابو درداء هم معمول وو. د ه به د سمزنه د تهیلئ نه هر دکی را او سنکه او تسبیح به یے ایرے وے. تر دے چه تهیلئ به یے تشه کره. د غه عمل د ابو صفیه د حضرت د غلام هم وو. د ابو هریرهؓ نو سے والی چه د ښکه په مزی کښ به دوه زره غوټے وے. چه تر څو به یے دو مره تسبیح نه وو ویلی. نو دے به نه اوده کیده. د حضرت فاطمےؓ چه د امام حسینؓ مور وه هم د غسے د غوټو یو تار وو چه په دے به یے تسبیح وے. دے ته "مذکره" هم د صوفیانو په اصطلاح کښ وائی. په تسبیو قدرتی ذکو ته بنده تیاریږی. مخکنو صوفیانو به خپلو مریدانو ته تسبیے ور کولے او د دے اجازت به یے هم ورکوو. جنید بغدادیؒ سره تسبے وے. او د همغه استاد سری سقطیؒ سره هم وے. او د ده استاد معروف کرخیؒ سره هم وے. او د ده استاد حسن بصریؒ سره هم وے. بقول چشتیان د غسے تسبیح لری.

(۲۰) عَنْ اِبْنِ اَعْبُدْ قَالَ قَالَ عَلِیٌّ
اَلَا اُحَدِّثُكَ عَنِّیْ وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ
وَكَانَتْ مِنْ اَحَبِّ اَهْلِهٖ اِلَیْهِ قُلْتُ
بَلٰی. قَالَ اِنَّهَا جَرَّتْ بِالرَّحٰی حَتّٰی اَثَّرَ
فِیْ یَدِهَا وَاسْتَقَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتّٰی
اَثَّرَ فِیْ نَحْرِهَا وَكَنَسَتِ الْبَیْتَ حَتّٰی اَغْبَرَّتْ
ثِیَابُهَا فَاَتَی النَّبِیَّ صلعم خَدَمٌ فَقُلْتُ لَوْ
اَتَیْتِ اَبَاكِ فَسَاَلْتِهٖ خَادِمًا فَاَتَتْهُ
فَوَجَدَتْ عِنْدَهٗ حُدَّاثًا فَرَجَعَتْ فَاَتَاهَا
مِنَ الْغَدِ فَقَالَ مَا كَانَ حَاجَتُكِ فَسَكَتَتْ
فَقُلْتُ اَنَا اُحَدِّثُكَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جَرَّتْ
بِالرَّحٰی حَتّٰی اَثَّرَتْ فِیْ یَدِهَا وَحَمَلَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتّٰی
اَثَّرَتْ فِیْ نَحْرِهَا فَلَمَّا اَنْ جَآءَكَ الْخَدَمُ اَمَرْتُهَا
اَنْ تَاْتِیَكَ فَتَسْتَخْدِمَكَ خَادِمًا.

حضرت علیؓ خپل شاګرد ته وئیلے چه زه در ته د ځان او د خپلے بی بی فاطمےؓ چه د خوږ نبی محبوبه لور وه قصه او نه کړم؟ ده ور ته اووے چه ډیره ښه ده. ده وے چه فاطمےؓ بی بی به خپله میچنه اوړوله. په دے یے لاسونه غوټهان شو. او په خپله به یے په مشک کښ اوبه راوړے. نو په سینه کښ یے د ډیری نخے اولګیدے. او په خپله به یے ځائی جارو کوو. نو جامے به یے خیرنے وے. یو ځل ار د خوږ نبی علیه السلام سره ویښځے غلامان راغله. ما فاطمےؓ ته اووے چه که ته د خپل پلار سره لاړے. او یو خادم د ترے او غوښته نو تا ته به د کور کار آسانتی را شی. نو خوږ نبی سره ډیره ګڼړه وه کانو دا بیرته راغله. په دویم ورځ خوږ نبی علیه السلام په خپله ز مونږ سره راغے. او د دے نه یے پوښتنه او کړه چه ته

يَقُمْ خَادِمًا بَيْنَهُ قَالَ اِتَّقِي اللّٰهَ يَا فَاطِمَةُ وَاَدِّي فَرِيْضَةَ رَبِّكِ وَاعْمَلِي عَمَلَ اَهْلِكِ فَاِذَا اَخَذْتِ مَضْجَعَكِ فَسَبِّحِي ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَاحْمَدِي ثَلٰثًا وَّثَلٰثِيْنَ وَكَبِّرِي اَرْبَعًا وَّثَلٰثِيْنَ فَتِلْكَ مِائَةٌ فَهِيَ خَيْرٌ لَكِ مِنْ خَادِمٍ قَالَتْ رَضِيْتُ مِنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ (ابوداؤد)

پرون په څه غرض راغلې وې؟ دا د شرم ځپ شوه. نو ما ورته غرض اوکړو. چه دا د کور کار د پاره خادم غواړي. لاس او سينه يې په ميچن او مشک پاڅه شوي دي. جامې يې په جارو خيرنې شي. پرون ورته ما اووې. چه ته د پلار سره لاړه شه. چه خادم درکړي. دوی او فرمايل چه فاطمې د خدای نه اويريږه. د خدای فرض ادا کوه.

او د کور کار روبار په خپله کوه. او چه ما سمولو ته اوده کيږې نو سبحان الله درې ديرش او الحمد لله درې ديرش او الله اکبر څلور ديرش کرت اووايه. دا د خادم نه ښې دي. ګوړې زه د الله په تقدير او د رسول په فرمان راضيم.

دغه رنګ د حضور دوه ترور زي هم يو خيال خوږ بنی ته ورغلي وو. او خوږ بنی ورته اووې چه د بدر يتيمان ستاسو نه ډير حق لري. او دوی ته يې هم دا وظيفه اوښوده. چه په پس د الله اکبر دېرش دېرش کرت او لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ تر آخره يو کرت اوښودې دي.

فائده: - دا تسبيحات خوږ بنی خپلو بيا نو ته هم ښودلي وو. ګويا د دنيا د مشقت په ځای د آخرت د فکر د پيدا کولو خيال پکار دی. د آخرت د آرام سامان پکار دی. او د دې د پاره دا تسبيحات ډير مفيد وو. ځکه د دې تعليم ورکوو. بل په دې کلماتو کښې د دنيا منافع هم په لاس راځي. يو حديث دې چه د دجال د راتلو په وخت کښې به د خلقو خوراک د ملائکو هسې تسبيح تقديس اوګرځي. د چا چه دا معمول وي. هغوی ته اوږه نه کيږي. چه د دجال په زمانه کښې د عام مومنانو دا خوراک شي. نو اوس خو د خواصو د پاره دا پکار دي چه دا ئې غذا اوګرځي. د خدای نيکان واقعي چه د دې خوراک په ځای د وظائفو په خوراک ښه تيار کړه وي. او په دې کلماتو ښه طاقت او قوت حاصليږي. ابن تيميه ليکي چه په دې کلماتو به په فاطمهؓ بی بی کښې طاقت راتلو. نو موږ. ولې د دې په وظيفه د ستومانتيا نه ځان بچ نه کړو. ملا علي قاري وائي دا تجربه شوې خبره ده. چه په دې ستومانتيا لرې کيږي. دا تسبيحات به په دنيا او آخرت کښې د خادم نه زيات فائده مند ثابتيږي. د دې نه دا هم معلومه شوه چه هر کله خوږ بنی خپله لور بي بي د کور کار نه نه خلاصوي. نو زموږ زنانه ته پکار دي. چه د دې نه نصيحت واخلي. او د کور کار په خپله کوي. ولې دوی د خوږ بنی د لور نه زيات نازولې دي څه؟ الله د زموږ خوږ ميندې د فاطمې بی بی هسې د کور په کارو نو مينې کړي. (آمين)

# خاتمه

په دے خاتمه کښې د صلوٰة تسبیح په باره کښې څه کوم فضائل په احادیثو کښې ذکر دی. هغه لیکم. دا تسبیحات په څلور رکعته مونځ کښې درے سوه کرته اې. د ما غرض په مختلفو موقعو کښې ویلے شی. خو ږ نبی د دے په باره کښې ډیر ترغیب ورکړے دے. الله د دا د هر چا نصیب کړی آمین.

(۱) عن ابن عباس ان النبی علیه السلام قال للعباس بن عبد المطلب یا عباس یا عماه الا اعطیک الا امنحک الا اخبرک الا افعل بک عشر خصال اذا انت فعلت ذالک غفر الله لک ذنبک اوله و آخره قدیمه وحدیثه خطأه وعمده صغیره و کبیره سره وعلانیته ان تصلی اربع رکعات تقرء فی کل رکعة فاتحة الکتاب والسورة فاذا فرغت من القراءة فی اول رکعة وانت قائم قلت سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر خمس عشرة ثم یرکع فتقول وانت راکع عشرا ثم یرفع راسک فتقولها عشرا ثم تهوی ساجدا فتقولها وانت ساجد عشرا ثم ترفع راسک فتقولها عشرا ثم تسجد فتقولها عشرا ثم ترفع راسک فتقولها عشرا فذالک خمس وسبعون فی کل رکعة تفعل ذلک فی اربع رکعات ان استطعت ان تصلیها فی کل یوم مرة فافعل فان لم تفعل ففی کل شهر مرة فان لم تفعل ففی کل سنة فان لم تفعل ففی عمرک مرة (ابوداؤد)

د ابن عباس نه روایت دے دا دے چه خوږ نبی علیه السلام خپل تره ته اووے. چه آیا زه تا ته یو بخښه اوکړم. یو څیز درته اوښایم چه په دے به ته د لسو څیزو نو مالک شے. که دا کار د اوکړه نو خدائ به ستا ټول مخکنی او روستنی زاړه او نوی په غلطئ او د قصد وارهٔ او لوئ پټ او ښکاره ګناهونه معاف کړی. هغه کار دا دے چه څلور رکعته د تسبیح مونځ اوکړه. او په هر رکعت کښې د الحمد او سورت نه روستو پنځلس ۱۵ تسبیح بیا په رکوع کښې لس کرته او د رکوع نه پس په اولاړے لس کرته او په سجده کښې لس بیا د دویم سجدے په ناسته کښې لس بیا چه دویمه سجده اوکړے نو کښې لس کرته او د وایه. بیا پاسه. نو دا پنځه اویا شو. د دغه شان په څلورو وارو رکعتو نو کښې هم دغسے کړه او دا مونځ هره ورځ یو کرت اوکړی هره جمعه کښې کنی هره میاشت کښې کنی هر کال کښې کنی په ټول عمر کښې یو کرت اداکړه.

(۲) خوږ نبی علیه السلام عبد الله بن عمر ته هم اووے. چه دا مونځ کوه. نو ټول ګناهونه به د معاف شی. خو د ته ہے اووے. چه د نمونځ که نه زیرو نه روستو کوه. نو د ه ورته اووے.

چه که په دې وخت کښې هم او نه کړه . نو خوږ نبي علیه السلام ورته اووې . چه خیر دې . په بل وخت کښې یې کوه — (۳) خوږ نبي علیه السلام جعفر بن ابي طالب ته چه د حبشې نه راغې . د غسې مونځ وښا وکړه . او دغه طریقې د عبدالله بن مبارک په روایت داده . چه د ثنا نه روستو پنځلس کرته دا تسبیح او چه دواړه سجدې اوکړي . نو بیا به نېغ اودریږي . دغه به په ناسته پنځلس کرته دا تسبیح نه وايي . ځکه چه د ثنا نه روستو پوره قرائت نه مخکښې تسبیحات پنځلس کرته او ویلي شول . او د رکوع او د سجدې تسبیحات به درې درې کرته اولس ځان ته وايي . دا په حساب کښې نه دي .

فائده :- د دې احادیثو نه د صلوٰة تسبیح لوی شان او فائدې تاسو اولوستې . هکښتو د امت محمد ﷺ ثینو ، فقهاء او صوفیانو د دې ډیر اهتمام کړیدې . تر دې وخته نیکان په دې عمل کوي . ابن مبارک به دا اخاځا هره ورځ د زوال نه روستو کول . ابو عثمان وايي چه د غمونو درد و لرې کونکې د صلوٰة تسبیح نه زیات بل څیز نشته . په دې کښې سره د دې ثوابونو سستي د بند بد قسمتي ده . مرقات کښې لیکي چه عبدالله بن عباس به دا هره جمعه کول .

بعض علماؤ د دې حدیث نه په دې وجه انکار کړیدې . چه په دې لږ عبادت دومره ثوابونه ورکول . او بیا په دې لوی ګناهونه معاف کیدل صحیح نه معلومیږي . خو دا حدیث د ډیرو اصحابو نه ثابت دې . نو انکار ترې څه معنی نه لري . او د لویو ګناهونو د پاره توبه د قانون په لحاظ شرط ده . ولې که خدائ فضل کوي نو ورته هم معاف کولې شي .

تا سو د دې مونځ دوه طریقې اولوستې . یو د ثنا نه روستو پنځلس کرته تسبیح ده . او بله د دوو سجدو نه روستو ناسته کښې لس کرته تسبیح ده . نو په دیکښې ښه خبره داده . چه کله په یوه طریقه او کله په بله عمل اوشي . د دې په باره کښې یو څو مسئلې لیکم . ځکه چه دا مونځ مشهور نه دې — (۱) د دې د رکعتونو د پاره څه خاص سورتونه مقرر نه دي . خو بعض علماء وايي . که حدید ، حشر ، صف ، جمعه او تغابن او ویلې شي نو ښه به وي . په بعض احادیثو کښې شل آیتونه په هر رکعت کښې د ویل راغلي دي . بعضو اذا زلزلت ، عادیات ، تکاثر ، العصر ، کافرون ، نصر ، اخلاص لیکلي دي .

(۲) په ژبه به دا شمیره نه کوي . په تسبیح په مانځه کښې شمیره جائز ده . خو مکروه ده . ښه به دا وي چه ګوتې کوم ځائ پرتې وي په هغه د شمیر په وخت کښې زور کوي .

(۳) که په یو مقام کښې تسبیح هیر کړي . نو په بل مقام کښې د دا زیاتې او وايي . خو دا قضا

به د رکوع او د سجدو په منځ کښې نه کوی. د غیسې د دوېمې رکعت او د دویم رکعت نه پس به
په ناسته کښې دا قضا نه کوی. بلکه په دیکښې به صرف مقرر تسبیحات قدرې وائي. او دا قضا
به په بل مقام کښې کوی — (۴) — که د ده نه د غلطۍ په وجه سجده سهوه او شوه. نو د
دے په سجده کښې به دغه لس تسبیحات نه وائي. ځکه چه دا ټے شوه ۳۰ شمیره خو پوره شوی دي.
خو که قضا ترې شوی وی نو دا به په سجده سهوه کښې و یلے شي.

(۵) په بعض احادیثو کښې د سلام نه روستو دا دعا راغلې ده.

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُکَ تَوْفِیْقَ اَهْلِ الْهُدٰی
وَاَعْمَالَ اَهْلِ الْیَقِیْنِ وَمُنَاصَحَةَ اَهْلِ التَّوْبَةِ
وَعَزْمَ اَهْلِ الصَّبْرِ وَجِدَّ اَهْلِ الْخَشْیَةِ
وَطَلَبَ اَهْلِ الرَّغْبَةِ وَتَعَبُّدَ اَهْلِ الْوَرَعِ
وَعِرْفَانَ اَهْلِ الْعِلْمِ حَتّٰی اَخَافَکَ اَللّٰهُمَّ
اِنِّیْ اَسْئَلُکَ مَخَافَةً تَحْجُزُنِیْ بِهَا عَنْ
مَعَاصِیْکَ وَحَتّٰی اَعْمَلَ بِطَاعَتِکَ عَمَلًا اَسْتَحِقُّ
بِهٖ رِضَاکَ وَحَتّٰی اُنَاصِحَکَ فِی التَّوْبَةِ
خَوْفًا مِّنْکَ وَحَتّٰی اُخْلِصَ لَکَ النَّصِیْحَةَ
حُبًّا لَّکَ وَحَتّٰی اَتَوَکَّلَ عَلَیْکَ فِی الْاُمُوْرِ
حُسْنَ الظَّنِّ بِکَ سُبْحَانَکَ خَالِقَ النُّوْرِ رَبَّنَا
اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا اِنَّکَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ
قَدِیْرٌ بِرَحْمَتِکَ یَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِیْنَ۔

اے خدایه! زه ستا نه د یقین کونکو هسې توفیق غواړم.
او د دوی عمل او د توبه اوبښکونکو هسې خلوص او صابرانو
هسې پوخ واله او ستا نه د ویریدونکو هسې احتیاط. او
د رغبت لرونکو هسې طلب او د پرهیزګارانو هسې عبادت
او د علماؤ هسې معرفت غواړم چه ستا نه او ویریږم. په دا ډیره
چه ما ستا د نافرمانۍ نه منع کړي. او دا سې عمل اوکړم چه
پرے ستا رضا حاصله کړم او ریښتینې اخلاص اوکړم او
په اخلاص تا سره محبت اوکړم. او د ښه ګمان په وجه په
تا توکل اوکړم. اے د نور پیدا کونکیه. ستا ذات
پاک دے. اے کامله ربه. ماته پوره رڼا اوکړے
او ما او بخښے. ته بے شکه په هر څیز قادر یې.
اے ارحم الراحمین ته په خپل رحمت زما دا
سوال قبول کړے.

(۶) دا مو نځ بے د مکروه اوقات نه په بل هر وخت کښې کیدے شي — (۷) — په بعض احادیثو کښې د
دے کلمے سره لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ هم راغلې دے. ځکه که کله کله و رسره دا او یلے شي نو ښه به وی.

وَآخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ۔

تمت بالخیر

(مولانا) زکریا کاندهلوی

ترجمه: مولانا حبیب الرحمان صاحب مفسر تفسیر حبیبی - دار التصنیف - روستم.
د موندو ځایونه (۱) انواری کتبخانه تخت بهائی مردان (۲) دار التصنیف روستم - ضلع مردان